

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلېږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




# ټولنیز لوستونه

## پنځم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: ټولنیز علوم

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومو څانګې علمي او مسلکي غړي

اېډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اېډیټ د څانګې علمي غړي

ټولګی: پنځم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هجري شمسي

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلند کېږي.

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښېونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

# لومړی څپرکی

## ټولنه

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د ټولنې په مفهوم پوه شي.
- انسان به د ټولنیز موجود په توګه و پېژني.
- د ټولنې په پرمختګ کې د ټولنیزو اړیکو ارزښت تشریح کړای شي.
- د سولې، پخلاینې او انسان دوستۍ سره یې مینه او علاقه زیاته شي.
- خپل او د نورو حقونه و پېژني او هغو ته درناوی وکړي.

لومړی لوست

## ټولنه څه ته وايي؟

**پوښتنه:** ستاسو په آند، ټولنه څه ته وايي؟



**ټولنه د خلکو هغې ډلې ته ویل کېږي چې ډېره موده یې سره یو ځای ژوند کړی وي، ګډه سیمه یې په واک کې وي او ګډې موخې ولري.**

**د بېلګې په توګه: هغه خلک چې په یوه کلي کې ژوند کوي، د یوې کلیوالي ټولنې خلک دي، د کلیو د اوسېدونکو ګډه موخه دا ده چې د مال ساتنې او نورو چارو له لارې یو له بل سره مرسته کوي او خپل ژوند سمبالوي.**

د کليو د خلکو شمېر لږ وي نو له دې امله کلی يوه وړه ټولنه ده.

په يوه ښوونځي کې زده کوونکي او ښوونکي هم د يوې کوچنۍ ټولنې وګړي دي، د دې ډلې ګډه موخه د علم او پوهې زده کول دي.

هغه خلک چې په يوه هېواد کې ژوند کوي، د يوې لويې ټولنې وګړي ګڼل کېږي چې هغې ته ملت ويل کېږي.

ټول مسلمانان چې په بېلابېلو هېوادونو کې ژوند کوي،د يوې لويې ټولنې وګړي دي چې د اسلامي امت په نامه يادېږي.



## فعاليت

د لويو او کوچنيو ټولنو د توپير په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- ټولنه څه ته وايي؟

٢- د يوې کوچنۍ ټولنې، لکه: د ښوونځي، موخې څه دي؟

٣- کليوال خلک له کومې لارې څخه د خپل ژوند اړتياوې پوره کوي؟



## کورنۍ دنده

د ټولنې په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# انسان او ټولنه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، انسان او ټولنه په خپلو کې څه اړیکې لري؟**



ټولنه د انسانانو د راټولیدلو او د هغوی د دوه اړخیزو فعالیتونو څخه منځ ته راغلې ده چې یوځای سره ژوند کوي او ګډو موخو ته د رسیدو لپاره یو له بل سره مرسته کوي.

د انسان له ځانګړنو څخه یوه هم د هغه د ټولنیزو اړیکو درلودل دي.انسان په یوازې ځان د خپلو اړتیاوو د پوره کولو وس نه لري. له دې کبله، ټولنیز ژوند ته اړتیا لري چې په ټولنه کې خپلې اړتیاوې پوره کړي.

د ټولنې هرغړی کولای شي چې له تاسو سره د ستونزو په وخت کې مرسته

وکړي او ټولنه کولای شي چې له تاسو سره په جسمي، عاطفي او مالي برخو کې مرسته وکړي. خلک تل په خپلو کې د اړیکو د ټینګښت لپاره کوښښ کوي، د هغوی دغه اړیکې، قوانین او مقررات رامنځته کوي چې ټولنه منظموي.

موږ ته په کار دي په هغو تصمیمونو کې چې په ټولنه کې د ګډو موخو د رسېدلو لپاره نیول کېږي، د ټولنې د یو ښه او منظم غړي په توګه مرسته وکړو؛ یو بل ته لاسونه ورکړو او په ګډه د یوې ښې ټولنې په جوړولو کې کوښښ وکړو.



## فعالیت

په ډلو کې د انسان او ټولنې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- انسان په یوازې ځان خپلې اړتیا وې پوره کولای شي؟

۲- ټولنه له تاسو سره څه مرسته کولی شي؟

۳- د یوې ښې ټولنې د جوړولو لپاره څه باید وکړو؟



## کورنۍ دنده

د انسان او ټولنې د اړیکو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# ټولنیزې اړیکې

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، انسانان کولای شي چې له نورو سره له اړیکو پرته په ټولنه کې ژوند وکړي؟**



**انسانان کولای شي چې یو له بل سره اړیکې ټینګې کړي او خپل مقصد یوبل ته څرګند کړي.**

**نوی زیږېدلی ماشوم په ژړا سره مور او پلار پوهوي چې وږی شوی یم، خو کله چې مور شي خپله خوښي په موسکا سره څرګندوي.**

**ماشوم له نورو سره د اړیکو ټینګولو او د خپلو غوښتنو د پوهولو ډېر لږ توان لري، خو څومره چې لویږي، خبرې او اشارې زده کوي چې د هغو په واسطه کولای شي له نورو سره اړیکې ټینګې کړي.**

**هېڅوک په یوازې ځان نه شي کولی چې خپلې اړتیاوې پوره کړي، نو ځکه یو د بل مرستې او لاس نیوي ته اړتیا لري. په خپلو کې د مرستې او اړیکو د**

ټينګولو په ترڅ کې کولای شي چې خپلې اړتیاوې په آسانۍ سره پوره کړي.
نن ورځ د ټکنالوژۍ په پرمختګ سره د خلکو ترمنځ اړیکې د ډله ییزو ارتباطي وسایلو، لکه: موبایل، کمپیوټر، انټرنیټ او د داسې نورو له لارې ډېرې آسانې شوې دي. ژبه، په بشري ټولنه کې د اړیکو نیولو یوه مهمه وسیله ده.
انسان د ژبې په واسطه کولای شي چې ډېر مشکل مفاهیم او احساسات نورو ته انتقال کړي. که چېرته انسان خپل مطلب نورو ته نه شوای وړاندې کولای، نو بشري پوهې به هېڅکله پرمختګ نه وای کړي.
موږ په داسې حال کې چې د خپلې کورنۍ غړي یو، د خپل کلي، ولسوالۍ، ښار او د هېواد له نورو وګړو سره هم اړیکې لرو. نو له دې امله، هرڅومره چې له نورو سره زموږ اړیکې ډېرې وي، په هماغه کچه د خپلې ټولنې اړتیاوې په ښه ډول سره پوره کولای شو.



## فعالیت

په ډلو کې د ټولنیزو اړیکو د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- له نورو سره اړیکې څه ګټه لري؟
۲- انسان کولای شي چې په یوازې توګه خپلې اړتیاوې پوره کړي؟
۳-د ټولنیزو اړیکو په ټینګښت کې ژبه څه رول لري؟



## کورنۍ دنده

د ټولنیزو اړیکو په پرمختګ کې د ژبې د رول په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# سولې ته د ټولنې اړتیا

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، مور سولې ته ولې اړتیا لرو؟**



سوله، روغې، آرامۍ او له جګړې څخه لرې ژوند ته وایي.
ډېر کلونه کیږي چې جګړې او ګډوډۍ زمور خلکو او هېواد ته ډېر مالي او ځاني زیانونه اړولي دي. ځکه خو مور له هر څه د مخه سولې ته ډېره اړتیا لرو، سوله د ژوند اړتیا ګڼو او سولې ته د رسیدلو لپاره کوښښونه کوو.
سوله او آرامي ټولنه د پرمختګ او پوهې پر لوري بیایي. په ټولنه کې د سولې او امن په راوستلو سره د خلکو ترمنځ اړیکې ټینګیږي او د ماشومانو او تنکیو

ځوانانو لپاره د ښوونې او روزنې ښې زمينې برابرېږي، د غير قانوني کارونو مخه نيول کېږي او ځوانان کولای شي چې په ډاډه او آرام زړه خپلې زده کړې پرمخ بوځي.

له دې کبله د هېواد د هر وګړي اسلامي او انساني دنده ده، چې د سولې په ټينګښت کې زيار وباسي.



## فعاليت

په ډلو کې د سولې د ګټو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- زموږ خلک سولې ته ولې اړتيا لري؟

٢- په کومو شرايطو کې کولای شو چې په ښه توګه تعليم او زده کړه وکړو؟

٣- د ټولنې د پرمختګ لپاره کوم شي ته اړتيا ده؟



## کورنۍ دنده

د سولې د ښيګڼو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د انسان حقونه

**پوښتنه**

ستاسو په آند، انسان کوم حقونه لري؟

**د قرآن کریم د لارښوونو او د بشر د حقونو له نړیوالې اعلامیې سره سم، د انسان حقونه دا دي:**

**د ژوند حق:** د ژوند حق او ژوند الهي ورکړه ده. باید ټول انسانان د ځان او د نورو د ژوند ژغورنې او ساتنې لپاره هڅې وکړي، ځکه چې دا زموږ د ټولو انساني دنده ده، لکه څنګه چې خپل ژوند راباندې ګران دی، د نورو ژوند هم را باندې ګران وي نو لازمه ده چې د بل چا ژوند ته زيان ونه رسوو.

**د زده کړې حق:** هرڅوک حق لري چې زده کړه وکړي، په ښوونځيو او پوهنتونونو کې خپلو زده کړو ته دوام ورکړي.

**د مالکیت حق:** هرڅوک حق لري چې کور، ځمکه، موټر او داسې نور ولري، موږ مسلمانان باید د نورو ملکیت ته درناوی ولرو او د نورو په مال باندې زیاتی ونه کړو.

**د اوسېدلو او ګرځېدو راګرځېدو حق:** هرڅوک کولای شي چې په خپل هېواد کې کور ولري او په آزادۍ سره وګرځي.تاسو کولای شئ چې په افغانستان کې هرځای ته چې وغواړۍ ولاړ شئ، هرچېرته چې وغواړۍ ژوند وکړئ او د نړۍ هرځای ته چې وغواړئ سفر وکړئ.

**د دندې او کار آزادي:** هرڅوک حق لري چې د ځان لپاره له خپل توان او خوښې سره سم یوکسب او کار وټاکي.

**د سالم چاپېریال د لرلو حق:** هرڅوک حق لري چې په یوه پاک او سمسور

چاپېريال کې ژوند وکړي او حکومت بايد په دې اړه له خلکو سره مرسته وکړي.

**برابري:** ټول انسانان په خپلوکې سره برابر او مساوي دي، هېڅوک حق نه لري چې د ژبې، مذهب، سيمې او نورو له کبله يو پر بل باندې ځان ښه وګڼي،موږ مسلمانان نه يوازې په خپلو کې مسلمانان ورونه يو، بلکې په خپلو کې برابرهم يو.

**د آزادۍ حق:** آزادي او شخصي مصوونيت د هرانسان حق دی،بايد چې هغه ته درناوي وکړو. هرهغه څه چې د ځان لپاره خوښوو، د نورو لپاره يې هم خوښ کړو او حق نه لرو چې د نورو آزادۍ ته زيان ورسوو.

**د بيان آزادي:** هرانسان حق لري هرڅه چې غواړي په ژبه يې ووايي،خو چې د اسلام د دين د اصولو پرخلاف نه وي او يا د نورو په زيان نه وي ترڅو د نورو حقونه تر پښو لاندې نه کړي، د بېلګې په توګه:موږ حق نه لرو چې نورو ته بد ووايو.




په ډلو کې د هرچا د حقونو په اړه خبرې وکړئ.




١- د ژوند حق بيان کړئ؟

٢- د انسان دحقونو نومونه واخلئ ؟

٣- د زده کړې حق څه شی دی، بيان يې کړئ؟




زده کوونکي دې د مالکيت د حق په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي او سبا ته يې دې په ټولګي کې ووايي.

# ټولنیز خدمتونه

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د ټولنیزو خدمتونو په مفهوم پوه شي.
- په هېواد کې د ښوونې او روزنې په بهیر پوه شي.
- د اوبو رسولو او د څښلو د پاکو اوبو په ارزښت پوه شي.
- د عامې روغتیا په مفهوم او اهمیت پوه شي.
- د برښنا، مخابراتو، پوستي، انټرنېټ او ټولنیزو رسنیو د اهمیت په هکله توضیحات ورکړای شي.
- د ښاروالۍ، پولیسو او د ترافیکو د پولیسو سره د مرستې روحیه پیدا کړي.

شپږم لوست

## ټولنیز خدمتونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، خلک ولې ټولنیزو خدمتونو ته اړتیا لري؟**






پخوا به د انسان ډېرې اړتیاوې په کورنۍ او کلي کې پوره کېدلې، خو ورو ورو د ژوند د طریقو په بدلون سره د ټولو اړتیاوو پوره کول د کورنۍ له توان څخه بهر شو. د دې اړتیاوو د پوره کولو دنده ځانګړو ادارو ته چې د هغوی کار خلکو ته د ټولنیزو خدمتونو وړاندې کول دي، وسپارل شو.

نن همدغه ادارې کوښښ کوي چې د خلکو فردي او ټولنیزې اړتیاوې پوره

کړي؛ د بېلګې په توګه: خلک د تعلیمي اړتیاوو د پوره کولو لپاره ښوونځیو، پوهنتونو، د ژوند د چاپېریال سمسورتیا او پاکۍ لپاره ښاروالۍ، د تلو او راتلو د نقلیه وسایطو د نظم لپاره د ترافیکو پولیس، د اړیکو ټینګولو لپاره مخابراتو، د پولي خدمتونو لپاره بانک او د درملنې لپاره روغتیایي کلینیکونو او روغتونونو ته اړتیاوې لري.

د دولت په جوړښت کې وزارتونه او ادارې وي چې د هغوی دنده په یوه ځانګړې برخه کې خلکو ته د خدمتونو وړاندې کول دي؛ لکه: د پوهنې، عامې روغتیا، مخابراتو، کرنې، اقتصاد او داسې نور وزارتونه دي.

هرڅومره چې وزارتونه خلکو ته په خدمت کې بریالي وي، په هماغه اندازه هېواد پرمخ ځي او په پای کې به سوکاله، او ډاډمنه ټولنه ولرو.



## فعالیت

په ډلو کې د ټولنیزو خدمتونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- پخوا به خلکو خپلې اړتیاوې څنګه پوره کولې؟
۲- د ټولنیزو خدمتونو ادارې څنګه منځ ته راغلې؟
۳- د ټولنیزو خدمتونو د څو بنسټونو نومونه واخلئ؟



## کورنۍ دنده

ټولنیزو خدمتونو ته د خلکو د اړتیا په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# ښوونه او روزنه

**پوښتنه**

**ستاسې په آند، ښوونه او روزنه څه ګټې لري؟**



**سالمه ښوونه او روزنه د ټولنې بنسټيزه اړتيا ده، چې انسانان ورته د نېکمرغه ژوند د تېرولو لپاره اړتيا لري. دې موخې ته د رسيدلو لپاره: وړکتونونه، ښوونځي، پوهنتونونه او داسې نور ښوونيز بنسټونه او مرکزونه جوړ شوي دي. د پوهنې او لوړو زده کړو وزارتونه د هېواد د ښوونيزو او روزنيزو بنسټونو په سرکې دي. ښوونځي، مدرسې، دارالمعلمينونه او داسې نور د پوهنې وزارت او پوهنتونونه**

د لوړو زده کړو په وزارت پورې اړه لري. ښوونه او روزنه د هر هېواد د پرمختګ او ترقۍ بنسټ دی.




په ډلو کې د ښوونې او روزنې په اړه خبرې وکړئ.




۱-د ښوونې او روزنې او د لوړو زده کړو بنسټونه کوم دي؟

۲-ښوونځي، مدرسې او دارالمعلمینونه په کوم وزارت پورې اړه لري؟




په خپلو کتابچو کې د ښوونې او روزنې د اهمیت په اړه څو کرښې ولیکئ.

# عامه روغتیا

**پوښتنه**

ستاسو په آند، کوم شیان د ناروغۍ لامل کېږي؟



زموږ په دولتي تشکیلاتو کې د خلکو د روغتیا ساتنې لپاره، د عامې روغتیا وزارت په نامه یو وزارت شته. دا وزارت د هېواد د ټولو خلکو د روغتیا او درملنې مسؤولیت لري. د عامې روغتیا وزارت دندې په دوو اساسي برخو وېشل کېږي: د وقایې (له ناروغیو څخه د مخنیوي) برخه. دویم د ناروغیو د درملنې برخه. د عامې روغتیا وزارت له وقایې او ناروغیو څخه د مخنیوي برخه د پولیو، چیچک، شري، تیتانوس او داسې نور واکسینونه ماشومانو ته لګوي چې ماشومان د ناروغیو پر وړاندې وقایه شي؛ ځکه چې وقایه د درملنې په نسبت آسانه او ارزانه ده.

د هېواد په ټولو ولایتونو او ولسوالیو کې د روغتونو او کلینیکونو جوړول د عامې روغتیا د وزارت له دندو څخه دي. نن ورځ د دولتي روغتونونو ترڅنګ په هېواد کې زیات شخصي روغتونونه او کلینیکونه شته چې د خلکو روغتیایي خدمت کوي.

د هېواد د ټولو خلکو دنده ده چې د خپل ژوند د چاپېریال پاکوالي او ساتنې ته پام وکړي. په ناپاکه چاپېریال کې مچان، ماشي او میکروبونه وده او نمو کوي، چې د ډول ډول ناروغیو د پیدایښت او انتقال لامل کېږي. له دې امله موږ ټول باید خپلې جامې، کور، کوڅه، ښوونځی او د خپل ژوند چاپېریال پاک وساتو؛ کثافات په یوه معلوم ځای کې راټول کړو چې په بېلابېلو ناروغیو اخته نه شو.




په ډلو کې د عامې روغتیا د دندو په اړه خبرې وکړئ.




۱- د ناروغیو په وړاندې خپل ځانونه څنګه وقایه کولی شو؟

۲- ماشومانو ته واکسین ولې کېږي؟

۳- موږ او تاسو د خپل کور، کوڅې او ښار په پاکوالي کې څه دنده لرو؟




خپله روغتیا څنګه ساتلی شئ؟ په دې اړه یو مطلب ولیکئ او سبا ته یې په ټولګي کې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.

# اوبه رسول

**پوښتنه**

ستاسې په آند، اوبه ولې تصفیه کوو؟



اوبه رسول یوه شبکه او دستگاه ده چې د چینو، سیندونو او د ځمکې لاندې اوبه د ځانګړو ماشینونو په واسطه په یوه ځای کې زېرمه کوي، د پاکوالي او صحي کولو څخه وروسته یې د پایپونو او نلونو په واسطه د سیمې خلکو ته توزیع کوي، زموږ د اړتیا وړ ټولې اوبه له باران یا له واورو څخه پوره کېږي چې یوه برخه یې د ځمکې لاندې زېرمه کېږي او نورې یې په سمندرونو کې تویږي. په هغو سیمو کې چې د اوبو رسولو سیستم نه شته، خلک د څاګانو، نهرونو او یا د سیندونو له اوبو څخه ګټه اخلي.

له دې مخکې چې د سیند یا څا ګانو اوبه د پایپونو یا نلونو په واسطه د کورونو منځ ته ولېږل شي، باید پاکې شي، دا کار د اوبو په تصفیه خانه کې ترسره کېږي.

اوبه له تصفیې او پاکولو وروسته د پمپ په واسطه د اوبو (ذخیرې) ته لېږل کېږي.

هغه زېرمه تون (ذخیره) چې د یوې ناحیې اوبه پوره کوي باید د یوې غونډۍ یا په اوچت ځای باندې جوړه شي چې د زېرمې اوچت والی پر اوبو دایمي فشار وارد کړي او هغه د پایپ په واسطه د کور د اوبو نل ته ورسوي.

د کورونو او کارخانو کارول شوې اوبه په معمولي ډول د صفایي لپاره، د ناپاکو

اوبو د تصفیې خــونو (تصفیه خانو) ته لېږل کېږي. وروسته بیا د پمپ په واسطه له ښار څخه بهر ته توېږي. په افغانستان کې د غیرمعیاري سیپټیک څاګانو کیندل له یوې ورځې څخه بلې ته د پاکو اوبو د کثیفولو او د ځښلو د صحي اوبو د کمښت لامل ګرځي. زموږ په هېواد کې د پاکو اوبو لاس ته راوړل لویه ستونزه ده چې دغه ستونزې د ماشومانو د مړینې د زیاتوالي او د هغې سیمې د خلکو د ډول ډول ناروغیو لامل ګرځي.

د پاکو اوبو په برابرولو او د چټلو اوبو د ایستلو دکانالونو په جوړولو سره چې د خلکو له اړینو اړتیاوو څخه ګڼل کېږي، د یو پاک چاپېریال څخه برخمن کېږو او د ډول ډول ناروغیو مخه هم نیول کېږي. موږ ته په کار دي چې له اړتیا څخه پرته اوبه له چټلې څخه وساتو او بې ځایه یې ونه لګوو.

روښانه ده چې د ځښلو پاکو اوبو ته دخلکو لاس رسی یوې سالمې او روغې ټولنې ته زمینه برابروي.



## فعالیت

په ډلو کې د څښلو اوبو ته د اړتیا په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- اوبه رسول څه ته وایي؟

۲- که د ځښلو صحي اوبه نه وي څه راپېښېږي؟

۳- د چټلو اوبو (فاضلاب) د کانالونو نشتوالی څه زیان لري؟



## کورنۍ دنده

د ځښلو د صحي اوبو د ګټو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# برېښنا

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، برېښنا څه ګټې لري؟**



**برېښنا هم د الله ﷻ د لويو نعمتونو څخه ده. برېښنا د اوبو، ګاز، نفت، باد او د هستوي انرژۍ څخه توليدېږي.**

**د برېښنا قوه د سيم يا کيبل په واسطه نورو ځايونو ته انتقالېږي. د برېښنا قوه د برېښنا د محرکه قوې په واسطه په فلزي هادي مزو کې حرکت کوي. په مزيو کې د برېښنا جريان ته برېښنا وېل کېږي.**

**برېښنا ډېرې ګټې لري، يوه ګټه يې د رڼا د انرژۍ توليد او روښنايي ده. نن خلک په ورځني ژوند کې له برېښنا څخه زياتې ګټې اخلي؛ د بېلګې په توګه: د کور په وسايلو کې، لکه: يخچال، کولر، راډيو، ټلويزيون او داسې نورو کې د برېښنا له انرژۍ څخه کار اخيستل کېږي. همدارنګه، برېښنا په صنعت، سوداګرۍ، طبابت او داسې نورو کې هم ډېر اهميت لري.**

**د برېښنا انرژي د خلکو لپاره د کارونو د آسانتيا او سهولت لامل کېږي. د برېښنايي وسايلو ډولونه، لکه: جارو، دجامو مينځلو ماشين، د برېښنا منقل او برېښنايي داش د کورنيو کارونه آسانه کړي دي. نن د برېښنا انرژي په ژوند کې دومره رول او اهميت لري چې پرته له هغې څخه ژوند کول ډېر ستونزمن دي. که احتياط**

ورسره ونه شي، برېښنا لوی خطرونه رامنځته کوي. نو د برېښنا له انرژۍ څخه سمه ګټه اخيستنه او د لاندې محافظتي ټکو رعايت کول به هېڅکله نه هېروئ:

• د لينونو د لوڅېدلو په صورت کې دواړه لينونه يو له بل سره لګېږي چې د لويو اورونو د لګېدلو لامل کېږي.

•کله چې د برېښنا د لين په لوڅو ځايونو انسان ولګېږي، برېښنا يې نيسي. هرکله چې يو څوک برېښنا نيولی وي، د هغه د خلاصون لپاره بايد د برېښنا جريان پرې کړو. له دې پرته له دغه سړي سره تماس زموږ په بدن کې د برېښنا د سرايت لامل کېږي.

•د برېښنا له شارټ شويو وسايلو څخه بايد کار وانه خلو.

•هېڅکله د برېښنا په صندوق (جاين بکس) او لوڅو شويو او پرې شوو مزيو لاس مه وهئ.

هغو اوبو، نمجنې ځمکې او ونو ته چې د برېښنا له مزيو سره تماس ولري، مه نږدې کېږئ.

•د اوراخېستنې په وخت کې بايد د برېښنا جريان قطع کړئ.

موږ بايد د برېښنا له زيات لګښت څخه ځانونه وساتو چې زموږ د نورو هېوادوالو کورونه هم روښانه شي.




په ډلو کې د برېښنا د خطرونو څخه د ځان ساتنې په اړه خبرې وکړئ.




۱- برېښنا څه ګټې لري؟
۲- په سيم کې د برېښنا جريان ته څه شی وايي؟
۳- برېښنا د څه شي په واسطه نورو ځايونو ته لېږدول کېږي؟




په کور کې له کومو برېښنايي وسايلو څخه کار اخلئ؟ په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# مخابرات

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، له خپلو دوستانو سره په دننه او بهرکې اړیکه څنګه نیولی شو؟**



**مخابرات د انسانانو ترمنځ د اړیکو نیولو او نږدې کېدلو وسیله ده. له مخابراتي وسایلو څخه په استفادې سره کولی شو په لږ وخت کې د نړۍ له ټېنو څخه معلومات ترلاسه کړو.**

**پخوا چې ټلیفون، مخابرې او نورنقلیه وسایل نه وو، خلک به له یوه ځای څخه بل ځای ته پلي تلل. لیک او خبر رسولو به له یوه ځای څخه بل ځای ته ډېر وخت نیوه. زموږ په هېواد کې تلګراف لومړنۍ مخابراتي وسیله وه چې وکارول شوه.**

**د عصري مخابراتي وسایلو لکه: ټلیفون، تلګراف، فکس او موبایل په منځ ته راتلو سره نن د ځوځانیو په موده کې په ټوله نړۍ کې د دوستانو له احوال څخه**

خبربدلی شو.

د فکس ماشين د مهمو او اړينو اسنادو په انتقال کې ډېرې اسانتياوې را منځته کړې دي.

کمپيوټر يو مډرن ماشين دی چې د بشر زياتې اړتياوې پوره کولی شي. کمپيوټر هرډول معلومات په خپله حافظه کې ساتي چې د اړتيا په وخت کې ترې کار اخيستل کيږي.



## فعاليت

په ډلو کې زموږ په هېواد کې د مخابراتي وسايلو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د مخابراتي وسايلو د ډولونو نومونه واخلئ؟

٢- له کمپيوټر څخه د څه لپاره کار اخيستل کيږي؟

٣- له فکس څخه څه کار اخيستل کيږي؟



## کورنۍ دنده

مخابراتي عصري وسايلو کومې اسانتياوې را منځ ته کړې دي؟ په دې اړه خو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د ډاګ خدمتونه

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، چې له یوه ځای څخه بل ځای ته لیک څنګه استولی شو؟**




**ډاګ(پُسته) هغه مؤسسه ده چې د خلکو لخوا د ځینو ارتباطي اړتیاوو د پوره کولو لپاره منځ ته راغلې ده. د پست له لارې کولی شو لیک، د مبارکۍ کارتونه، کتاب، ورځپاڼې او داسې نور شیان نورو خلکو ته د هېواد په دننه او بهرکې واستوو.**

**د دې لپاره چې زموږ لیک زموږ مطلوب شخص ته په خپل وخت ورسېږي، باید د هغه له پاسه پستي ټکټ ولګوو، د لېږدونکي او اخېستونکي آدرس د پاکټ پرشا باندې ولیکو او د ډاګ مسؤول ته یې وسپارو. په لیک باندې د پستي ټکټ لګول دا معنا لري چې مطلوب شخص او ځای ته د لیک د انتقال او رسولو کرایه مو تحویل کړې ده.**

هېڅکله د لیک د پاکټ په منځ کې پیسې وانه چوی او د پیسو د لېږلو لپاره د پست مالي ادارې یا بانک ته ورشئ. که چېرته خلك له نورو خلکو سره د خپلو اړیکو ټینګولو لپاره له ډاګ څخه کار واخلي، ډېرې ستونزې به یې په آسانی سره حل شي.



په ډلو کې د ډاګ د خدمتونو په اړه خبرې وکړئ.



۱- که غواړئ چې کوم ملګري ته مو چې په بل ښار کې ژوند کوي لیک واستوئ، له کومې وسیلې څخه کار اخلئ؟

۲- که وغواړئ چې لیک د ډاګ له لارې واستوئ، دا کار څنګه ترسره کوئ؟

۳- پستي ټکټ څه شی دی؟



د ډاګ د خدمتونو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# ټولنيزې رسنۍ

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، ټولنيزې رسنۍ څه اهميت لري؟**



**هغه وسايل چې دنده يې خلکو ته د معلوماتو او خبرونو رسول وي، رسنۍ بلل کيږي.**

**ټولنيزې رسنۍ د عامه افکارو په روښانولو کې ډېر اهميت لري. دا وسايل زيات ډولونه لري، لکه: ورځپاڼه، مجله، ټلويزيون، راډيو، کمپيوټر، انټرنېټ او داسې نور. ټولنيزې رسنۍ موږ له هر ډول پېښو څخه خبروي، د هوا حالات موږ ته رانښيي، د نړۍ له علمي او ټکنالوژيکي پرمختګونو څخه مو خبروي، سياسي، اقتصادي، فرهنګي او ورزشي معلومات او خبرونه خلکو ته وړاندې کوي.**

**رسنۍ دنده لري چې پر خبر رسولو سربېره له ښوونيز، علمي، تفريحي، د خوښيو**

پروګرامونه او د طبیعي او غیر طبیعي پېښو په اړه خبرونه هم برابر کړي چې په دې توګه رسنۍ د عمومي ښوونو وسیلې هم دي.

باید تل کوښښ وکړو چې له رسنیو څخه معقوله ګټه واخلو او له هغو مطالبو، تصویرونو او فلمونو څخه چې زموږ د اسلامي، اخلاقي، کلتوري او فرهنګي ارزښتونو څخه لېرې دي ځانونه وساتو.



## فعالیت

په ډلو کې له رسنیو څخه د معقولې ګټې اخېستنې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د ټولنیزو رسنیو د وسایلو نومونه واخلئ.

۲- رسنۍ له کومو پېښو څخه موږ خبروي؟

۳- له رسنیو څخه باید په څه ډول کار واخلو؟



## کورنۍ دنده

د رسنیو د اهمیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# انټرنیټ

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، له انټرنیټ څخه څه ډول ګټه اخېستلای شو؟**



**انټرنیټ د اړیکو نیولو یوه وسیله ده چې د نړۍ کمپیوټرونه یو له بل سره نښلوي. د کمپیوټر په واسطه هرڅوک کولای شي چې په نړۍ کې له نورو کمپیوټرونو سره اړیکې ونیسي او په هغې کې له موجودو معلوماتو څخه ګټه واخلي.**

**نن د انټرنیټ کارول عام شوي دي. د انټرنیټ له لارې کولای شو چې د علمي، فني، اقتصادي، سوداګریزو، فرهنګي او د وروستیو ټولنیزو اطلاعاتو او معلوماتو څخه خبرشو. د خپلې خوښې مجله او ورځپاڼه په کې ولولو.**

**د ایمیل له لارې هرچاته چې وغواړو لیک استولای شو او ځواب یې ترلاسه کولای شو. په انټرنیټ کې ډېر کتابتونونه شته چې له هغو څخه کولای شو د**

خپلې خوښې کتابونه ترلاسه کړو.

انټرنېټ د معلوماتو د تبادلې او د علمي استفادې لویه وسیله ده. له انټرنېټ څخه مثبته ګټه اخیستل د هېوادونو په پرمختګ او د ماشومانو او ځوانانو د استعدادونو په ودې او غوړېدو کې ګټور او اغېزناک دي.




په ډله ییز ډول د انټرنېټ د ګټو په اړه خبرې وکړئ.




١- انټرنېټ څه شی دی؟

٢- له انټرنېټ څخه کوم ډول معلومات لاس ته راوړلی شو؟

٣- انټرنېټ کومې اسانتیاوې منځته راوړې دي؟




د انټرنېټ د اسانتیاوو په اړه چې د خبرونو او معلوماتو په برخه کې یې منځته راوړي دي، په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# ترانسپورټ

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، مالونه د څه شي په واسطه له یوه ځایه بل ځای ته لېږدول کېږي؟**





**ترانسپورټ له یو ځای څخه بل ځای ته د مسافرو او مالونو لېږدولو ته وايي چې د موټر، ریل، الوتکې، بېړۍ او د پایپلاین(Pipeline) په واسطه ترسره کیږي. اوس مهال په افغانستان کې ترانسپورټي خدمتونه د ځمکې او هوا له لارې ترسره کېږي.**

ځمکنی ترانسپورټ د مسافرو او مالونو د لېږد په برخه کې خدمت کوي چې شخصي، ټکسي موټرې، ښاري بسونه، د هېواد د ښارونو او کلیو ترمنځ تګ راتګ کوي.

**اورګاډی (ریل): اورګاډی په ځمکني ترانسپورټ کې د مسافرینو او مالونو د لېږدولو ډېره ګړندۍ او ارزانه وسیله ده، اورګاډی د نړۍ په پر مختللو هېوادونو کې د ځمکې پر سر او د ځمکې لاندې تونلونو کې چې د میترو په نامه یادېږي هم فعالیت کوي.**

**د هېواد د هوايي ترانسپورټ په برخه کې اوس څلور کمپنۍ: (دآریانا افغان**

هوايي شرکت، کام اير، صافي او پامير) د مسافرو مالونو او د پست په رسولو کې بوختې دي. هوايي ترانسپورټ ډېر ګړندی، سوکال او ډېر لګښت لرونکې ترانسپورټي وسيله ده چې زياتره د مسافرو، مېوه جاتو او د هغو مالونو په لېږدولو کې چې وزن يې لږ وي او ارزښت يې زيات وي کارول کېږي.

زموږ په هېواد کې د کابل نړيوال هوايي ډګر چې اوس د حامد کرزي په نامه ياديږي، د کندهار نړيوال هوايي ډګر، هرات، مزار، ننګرهار او څو نور هوايي ډګرونه د داخلي او بهرنيو سفرونو لپاره کارول کېږي.

زموږ هېواد له هرې خوا په وچې پورې نښتی دی. ځکه خو سمندري فعاليتونه په کې نه شي کېدای. خو يوازې د هېواد له ځينو سيندونو څخه په سيمه ييزه کچه د کوچنيو بېړيو په چلولو کې کار اخلي.



## فعاليت

په ډله ييز ډول د ځمکني او هوايي ترانسپورټ د ګټو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- زموږ په هېواد کې څو ډوله ترانسپورټونه دي؟ نومونه يې واخلئ.

٢- له هوايي ترانسپورټ څخه زياتره د کومو مالونو په لېږدولو کې کار اخېستل کېږي؟

٣- زموږ په هېواد کې سمندري ټرانسپورټ ولې نشته؟



## کورنۍ دنده

د ترانسپورټ د ګټو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# ښاروالي

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، موږ د خپل ښار په پاکوالي او سمسورتیا کې څه مسؤولیت لرو؟**




ښاروالي د دولت یوه مهمه اداره ده چې په مرکز، ولایتونو او ولسوالیو کې فعالیت کوي. ښاروالۍ ډول ډول دندې لري چې مهمې یې دا دي:

- په ښارونو کې د واټونو پخول او د تم ځایونو جوړول.
- د پارکونو او تفریحي ځایونو جوړول.
- د مارکېټونو او راکړې ورکړې د چارو تنظیمول.
- د ښار د سمسورتیا لپاره په غونډیو کې د بوټو او نیالګیو کېنول.
- د ښار د سړکونو او کوڅو پاکول.
- له بار وړونکو لاریو، کورونو، د وکانونو او ښاریانو څخه د صفايي محصول اخیستل.

همدارنګه، په ولایتونو او ولسوالیو کې په ښاروالۍ پورې تړلې ټولې چارې د

ښاروالۍ لخوا پرمخ ځي، خو په لويو ښارونو کې د ځای د پراخوالي له امله، هره ښاروالي په ناحيو وېشل شوې ده چې هره ناحيه د خپلې سيمې اړوندې چارې سرته رسوي.

که څه هم په ښارونو کې د سمسورتيا او پاکوالي دنده د ښاروالۍ ده، خو بيا هم خلک بايد د ښارونو په سمسورتيا، د سړکونو او کوڅو په پاکوالي او د ماليې او صفايي په ورکړه کې له ښاروالۍ سره مرسته وکړي. زموږ دنده ده چې د خپلو کورونو کثافات او اضافه توکي په هغو کثافت دانيو کې چې د ښاروالۍ لخوا په ټاکلو ځايونو کې اېښودل شوي دي، واچوو. په پارکونو کې د تفريح په وخت چمنونه په پښو سره چيت او خراب نه کړو. همدارنګه، د ونو او ګلانو ښاخونه مات نه کړو، بلکې هغه وساتو او د خپل ښار په سمسورتيا کې نورهم زيار وباسو.



## فعاليت

په څو ډلو ووېشل شئ او د ښاروالۍ د دندو په اړه له يو بل سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د ښاروالۍ مهمې دندې کومې دي؟

٢- ښاري کثافت دانۍ د څه شي لپاره دي؟

٣-د خپل کور خځلې چېرته بايد واچوو؟



## کورنۍ دنده

د ښار په سمسورتيا او پاکوالي کې د ښاروالۍ د دندو او خلکو د مسؤوليت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# پولیس

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، پولیس کومې دندې لري؟**



**پولیس دنده لري چې په هېواد کې نظم او امن ټینګ کړي، چې خلک د سولې او آرامۍ په فضا کې خپل ژوند وکړي.**

**څنګه چې پوهېږو، خلک له هرڅه زیات نظم او امن ته اړتیا لري، د پولیسو دنده دا ده چې کوم کسان قوانینو او مقرراتو ته درناوی نه کوي، د خلکو نظم او امن ګډوډوي او د ټولنیزو اخلاقو پر خلاف کارونه، لکه: غلا، بډې اخېستل، اختلاس، د ځمکو غصب، قاچاق او داسې نور ترسره کوي، ویې نیسي او د قانون منګولو ته یې وسپاري.**

**پولیس د خلکو د سوکالۍ او امن په خاطر ډېرې نورې دندې هم لري چې ځینې یې دا دي:**

- د خلکو د ځان او مال ساتنه.
- د دولتي ادارو او عامه تأسیساتو ساتنه.
- د بهرنیو مؤسسو او سفارتونو ساتنه.
- د مواصلاتي لارو ساتنه.

موږ باید د سولې او امنیت د ټینګښت او د غوره ژوندانه لپاره هر وخت او په هر ځای له پولیسو سره مرسته وکړو او د خپل ځان، کورنۍ او هېواد پر وړاندې خپل مسؤولیت ترسره کړو. همدارنګه، د هغوی د اړوندو ادارو د تیلفون شمېرې ولرو چې د اړتیا په وخت کې ورته زنګ ووهو.



## فعالیت

په پنځه کسیزو ډلو کې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

لومړۍ ډله: پولیس څه دنده لري؟

دویمه ډله: پولیس کوم ډول خلک څاري او نیسي یې؟



## ځواب ورکړئ

۱- پولیس د کومو جرمونو مخه نیسي؟

۲- د پولیسو دندې بیان کړئ؟

۳- خلک د پولیسو په وړاندې کوم مسؤولیتونه لري؟



## کورنۍ دنده

که تاسو پولیس یاست، کوم کارونه به کوئ؟ په دې اړه یو مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# ترافیک پولیس

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، ترافیک پولیس څه دنده لري؟**



**ترافیک پولیس د خلکو د خدمت او په ټولنه کې د نظم د راوستلو لپاره منځته راغلي دي.**

**د ترافیکو اداره د پلیو لارویانو او نقلیه وسایلو د تلو راتلو د څارنې مسؤولیت پر غاړه لري او په ښارونو کې د نظم د راوستلو لپاره بېلابېلې دندې ترسره کوي، لکه:**

**-په څلور لارو کې د ترافیکي څراغونو روښانه کول، چې موټر په وارسره تېر شي.**

**-چلوونکي چې د ترافیکي مقرراتو څخه سرغړوی، جریمه کوي یې او ترافیکي پېښو ته ځانونه رسوي. خلک هم دنده لري چې د ترافیک پولیسو سره مرسته**

وکړي. همدارنګه، له ترافیکي مقرراتو سره بلدشي او هغو ته درناوی وکړي.

ترافیکي څراغونو او د پلیو تلونکو اړوندو مقرراتو او نښو ته پام وکړي او له امنیتي کمربندونو څخه کار واخلي. څرنګه چې په کلیو کې لږ خلک اوسیږي، نقلیه ماشیني وسایل ستونزې نه پیدا کوي، په ښارونو کې د نقلیه وسایطو زیاتوالی او د هغوی تلل راتلل د خلکو لپاره ستونزې پیدا کوي.

که ترافیکي مقررات او لارښوونې مراعات نه شي، ډېر خطرونه او ستونزې رامنځته کیږي.



## فعالیت

په اووه کسیزو ډلو کې د ترافیک پولیسو د دندو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د ترافیک پولیسو درې ډوله دندې چې سرته یې رسوي، بیان کړئ.

۲- د ترافیک پولیسو اداره د څه لپاره رامنځته شوې ده؟

۳- د ترافیک پولیسو په وړاندې زموږ څه دنده ده؟



## کورنۍ دنده

د ترافیک پولیسو ادارې ته د اړتیا په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# کرنه

### د ځپرکي موخې

زده کوونکي به د دې ځپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د کرنې په هکله معلومات ترلاسه کړي.
- له حبوباتو سره آشنا شي.
- صنعتي او طبي نباتات و پېژني.
- غلې او پلې لرونکي نباتات سره بېل کړای شي.
- د مېوو او سبو په ګټو پوه او ورسره مینه پیدا کړي.
- د کرنې او کرنیزو تولیداتو د زیاتوالي سره مینه پیدا کړي.

نولسم لوست

## کرنه

**پوښتنه:** ستاسو په آند، د کرنې تولیداتو ته وده څنګه ورکولی شو؟




**افغانستان یو کرنیز هېواد دی اکثره خلک یې له پخوا زمانو څخه تر اوسه پورې په کښت او کرنه بوخت دي. د هېواد کابو $\frac{1}{5}$ برخه کرنیزو ځمکو نیولې ده. خو د کیمیاوي سرو او مرضونو ضد درملونو لږ کارول، د کرنې زوړ سیستم کارول، د اوبو د بندونو د نشتوالي او د اصلاح شوو زراعتي تخمونو د لږو کارولو له امله حاصلات لږ دي.**

**د پورتنیو لاملونو د لیرې کولو او د شاړو ځمکو د کرنې لپاره د اوبو د بندونو**

او ویالو جوړول، دکرنیز و ماشین آلاتو او له هغو اصلاح شوو تخمونو څخه ګټه اخیستل چې زموږ د هېواد له اقلیم سره برابر وي، د حیواني او کیمیاوي سرو کارول، د بزګرانو د اتحادیو جوړول، له نباتي ناروغیو سره مجادله، او د هېواد په کرنیزو چارو کې د دولت په ملاتړ سره به موږ د ښې کرنې څښتنان شو.




په ډلو کې د لاندې چوکاټ تش ځایونه په خپلو کتابچو کې په ځیر سره ډک کړئ.







۱- کوم کارونه دکرنې د ښه والي سبب کېږي؟

۲- کوم شیان، زموږ په هېواد کې دکرنې د حاصلاتو د لړوالي سبب کېږي؟

۳- د اوبو د بندونو جوړول په کرنه کې څه ګټه لري؟




ستاسو په سیمه کې کومې غلې کرل کېږي؟ د هغو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# حبوبات

**پوښتنه**

ستاسو په سمیه کې کوم ډول غلې کرل کېږي؟



زموږ د هېواد ښه او مناسبه هوا د هر ډول حبوباتو د کرلو لپاره برابره ده چې ځینې یې دلته یادوو.

## الف) غلې

**غنم:** غنم زموږ د هېواد د خلکو اساسي خواړه جوړوي او په دوه ډول کرل کېږي، یو یې اوبیز او بل یې للمي غنم دي.

**-غنم:** په عام ډول د کال پر دوو وختونو کې کرل کېږي، یویې د مني غنم او بل یې پسرلني غنم چې دسیندونو، کاریزونو او چینو په اوبو خړوبېږي او له وښو څخه یې د څارویو د خوړولپاره ګټه اخیستل کېږي.

**-للمي غنم:** للمي غنم د پسرلي په موسم کې د غرونو په لمنو، غونډیو او دښتوکې کرل کېږي.

**جوار:** جوار زموږ په هېواد کې له غنمو څخه وروسته په دویمه درجه کرل او مصرفیږي. چې له دانو څخه یې د انسانانو د خوړو، غوړو او له پاڼو او ټانټو څخه یې د څارویو د خوړو لپاره ګټه اخېستل کېږي.

**شولې (وریجې):** د خلکو د خوړو مهمه برخه ده او زموږ په هېواد کې دوه ډوله وریجې کارول کېږي. یو ډول یې نرۍ وریجې او بل یې غټې وریجې دي.

**وربشې:** په افغانستان کې ډول ډول وربشې د انسانانو او څارویو د خوړولو لپاره کرل کېږي.

## ب) پلي لرونکي نباتات

له لوبیا، نخود، مې، نسک، باقلي، مشنګ، کلول، شاخل او داسې نور پلي لرونکي نباتات دي چې زموږ د هېواد په بېلا بېلو سیمو کې کرل کېږي.

لوبیا، سویا، نخود، نسک، مې، باقلي او مشنګ یې ډېر پروټین لري او زموږ خلک له هغه څخه د خوړو په توګه کار اخلي. کلول او شاخل په عمومي ډول څارویو ته ورکول کېږي.




په ډلو کې له حبوباتو څخه د ګټې اخیستنې په اړه خبرې وکړئ.




۱- د غلو د ډولونو نومونه واخلئ.

۲- د پلي لرونکو نباتاتو د ډولونو نومونه واخلئ.

۳- ستاسو په سیمه کې غنم په کوم موسم کې کرل کېږي؟




هغه حبوبات چې ستاسو په سیمه کې کرل کېږي، په خپلو کتابچو کې یې نومونه ولیکئ.

# صنعتي او طبي نباتات

**پوښتنه**

**ستاسو په آند کومو نباتاتو ته صنعتي نباتات وايي؟**






زموږ په هېواد کې پر غلو سربېره، صنعتي بوټي، لکه: پومبه، چغندر، ګني او داسې نور هم کرل کېږي چې په صنايعو کې د اومو توکو په توګه مصرفېږي.

**پومبه:** پومبه له ډېر پخوا زمانو څخه زموږ په هېواد کې کرل کېږي او د جامو لپاره ورڅخه ګټه اخيستل کېږي. د پومبې کښت ګرمې هوا او ډېرو او بو ته اړتيا لري. زموږ په هېواد کې پومبه د کندز، بغلان، تخار او بلخ په ولايتونو کې ډېره او د کاپيسا او ننګرهار ولايتونو کې په لږه اندازه چې د سيمې د خلکو اړتياوې پوره کوي کرل کېږي.

**چغندر:** چغندر هم د افغانستان له پخوانيو نباتاتو څخه دی چې د پومبې په څېر تودې هوا ته اړتيا لري. تر هغه مهال چې د بغلان د قندو فابريکه جوړه شوې نه وه، چغندر زموږ په هېواد کې په لږه اندازه کرل کېدل، خو د بغلان د قندو فابريکې د کار په پيلدو سره د قند لرونکو چغندرو کښت د کندز او بغلان په ولايتونو کې زيات شو.

**گني**: دگنيو اصلي ټاټوبی هندوستان دی. گني قندي مواد لري چې بوره ورڅخه جوړېږي او په هغه ځمکه کې چې توده او نمجنه هوا او ډېرې اوبه ولري ښه حاصل ورکوي. دگنيو د کرلو لپاره هغه سيمې چې تود او نمجن اقليم لري لکه ننګرهار، کونړ، بغلان ولايتونه مناسب دي.

**دافغانستان طبي نباتات**: زموږ گران هېواد افغانستان چې په معتدله سيمه کې پروت دی، زيات طبي بوټي يې په بېلابېلو سيمو کې راشنه کېږي چې څه نا څه يې د هېواد په د ننه کې د خلکو له خوا په دوديز طبابت کې کارول کېږي،لکه: سپيرکی، باديان، زرشک، د بابوني گل، زوف، سپيغول او داسې نور او د دې طبي بوټو يو څه برخه،لکه: خوږه وله، زعفران، زيره او نور له هېواد څخه بهر ته صادرېږي. تېل لرونکي نباتات، لکه: کونځلې، شرشم، زغر او نور هم زموږ په هېواد کې کرل کېږي.



## فعاليت

په ډلوکې د لوست په مهمو ټکو باندې بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- پومبه د هېواد په کومو ولايتونو کې ډېره کرل کېږي؟

۲- د جغندرو او گنيو د کښت سيمې معرفي کړئ؟

۳- د هېواد کوم طبي بوټي بهر ته صادرېږي؟



## کورنۍ دنده

د صنعتي نباتاتو د گټو په اړه ځو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# مېوې

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، مېوې د انسان بدن ته څه ګټې لري؟**



**زموږ د هېواد هوا باغدارۍ ته برابره ده. زموږ زیاتره خلک په باغدارۍ بوخت دي. مېوې د ویټامینونو او منرالونو سرچینه ده او په هېواد کې د کرنیزو مهمو تولیداتو له جملې څخه شمېرل کېږي. د افغانستان مشهورې مېوې انګور، منې، ناک، انار، آلو، آلوبالو، شفتالو، آلوبخارا، ګیلاس، توت، شاه توت، بادام، پسته، جلغوزي، انځر، زیتون، زردآلو، بهي، سنځلې، عناب، خټکي، هندوانې، نارنج، لیمو، مالټې، سنترې، کینو او داسې نورې دي.**

**هرکال یوه زیاته اندازه وچې او تازه مېوې چې د جنس، خوند او ډولونو له اړخه نړۍ کې بې ساري دي بهرته صادرېږي.**

**د نیالګیو کېنول، د مېوه لرونکو ونو او باغونو ښه مراقبت او ساتنه د ښوالۍ د**

تولیداتو د ودې او د ژوندانه د ښه ښیرازه چاپېریال او د پاکې هوا د منځ ته راتګ سبب کېږي.



فعالیت

په ډلوکې دهغو مېوو د ډولونو په اړه چې زموږ په هېواد کې پیدا کېږي، بحث وکړئ.



ځواب ورکړئ

١- کومې مېوې له هېواد څخه بهرته صادرېږي؟

٢- مېوې د کومو شیانو سرچینه ده؟

٣- د باغونو ښه ساتل څه ګټه لري؟



کورنۍ دنده

ستاسو په سیمه کې چې د مېو و کوم ډولونه شته، په خپلو کتابچو کې یې نومونه ولیکئ.

# سابه

**پوښتنه**

**فکر وکړئ، ستاسو په سیمه کې کوم ډول سابه کرل کیږي؟**



**د افغانستان هوا د سبو کرلو لپاره مناسبه ده. سابه د مېوو په څېر د ویټامینونو او منرالونو سرچینه ده چې کچالو، توربانجان، رومیان، گازرې، ټیپر، ملۍ، پیاز، هوگه، لبلبو، کدو، بادرنگ، ترایي، کرم، گلپي، بینډۍ، کاهو، مرچک او داسې نور یې شامل دي، په افغانستان کې کرل کیږي او زموږ خلک په ورځنیو خوړو کې ور څخه گټه اخلي. د یادونې وړ ده چې د شفتل او رشقې کرل هم زموږ په هېواد کې دود دي او په عمومي ډول د څارویو د خوراک لپاره هم تازه او هم وچ (دبېدې په شکل) کارول کیږي. شفتل او رشقه له هوا څخه**

نایټروجن اخلي، د ریښو په واسطه یې ځمکې ته ورکوي چې په دې ترتیب سره ځمکې ته قوت ورکوي او د راتلونکي کال لپاره یې کرلو ته چمتو کوي.

موږ او تاسو باید هره ورځ له خامو او پخو سبو څخه ډېره ګټه واخلو؛ ځکه چې سابه د ویټامینونو او منرالونو سرچینه ده او زموږ د بدن د روغتیا او سلامتۍ لپاره ډېر ګټور دي.



## فعالیت

د سبو د اقتصادي او حیاتي اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- سابه د کومو شیانو سرچینه ده؟

۲- د سبو د ډولونو نومونه واخلئ.

۳- کوم سابه پاخه خوړل کېږي؟ نومونه یې واخلئ.

۴- د شفتل او رشقې کرل د کرنیزو ځمکو لپاره څه ګټه لري؟



## کورنۍ دنده

د هغو سبو ډولونه لست کړئ چې ستاسو په سیمه کې کرل کېږي او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# څلورم څپرکی

## مال ساتنه

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د مالدارۍ په ارزښت او مفهوم پوه شي.
- د پسونو او غويانو د روزنې او ساتنې په هدف پوه شي.
- د آسونو او اوښانو ګټه اخېستنه تشريح کړای شي.
- د چرګانو او کبانو د فارمونو د ودې او پراختيا سره مينه پيدا کړي.

څلور ويشتم لوست

# مال ساتنه

**پوښتنه**: ستاسو په فکر، په افغانستان کې څو ډوله اهلي څاروي روزل کېږي؟



زموږ په هېواد افغانستان کې ډول ډول وحشي او اهلي څاروي ژوند کوي. اهلي څاروي، لکه: غوايي، اوښان، آسونه، وزې، قچرې، خره، غژګاو او داسې نور دي. وحشي څاروي، لکه: زمری، پړانګ، سورلنډی، شرمښ، غرڅه، هوسۍ، ګيدړ، سوی، بيزو، يګه، شکونړ او داسې نور دي.

همدارنګه، زموږ په هېواد کې کورني مرغان، لکه: چرګان، هيلۍ، فيل مرغ، کوترې او داسې نور ډېر دي ، صحرايي مرغان، لکه: زرکان، صحرايي چرګان،

چنچنې، سیسی، زانې، صحرایي هېلۍ، بلبل، کارغه، باز، باښه، عقاب، ټپوس او داسې نور شته.

اهلي ځاروي په کرنیزو چارو، د مالونو په لېږد رالېږد، د کورنیو د اقتصاد د لوړوالي، د غوښو او لبنیاتو، لکه: شیدو، مستو، کوچو، غوړيو، شړومبو، پنیر او داسې نورو ګټو لپاره ساتل کېږي.




د اهلي او وحشي ځارویو د اهمیت په اړه په ډلو کې سره خبرې وکړئ.




۱- ستاسو په سیمه کې کوم ډول اهلي ځاروي روزل کېږي؟ نومونه يې واخلئ.

۲- تاسو چې په کومه سیمه کې ژوند کوئ، د هغې په غرونو او دښتو کې کوم ډول وحشي ځاروي پیدا کېږي؟

۳- کورني او صحرایي مرغان یو له بل سره څه توپیر لري؟




ستاسې په سیمه کې چې کوم صحرایي او کورني ځاروي ژوند کوي، نومونه يې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# پسونه

**پوښتنه**

**څه فکرکوئ، ستاسو په سیمه کې څو ډوله پسونه موجود دي؟**



**د افغانستان اوبه هوا او ځمکه د پسونو د روزنې لپاره ډېره مناسب ده. له همدې امله، د افغانستان خلک پر کرنې سربېره مالونه هم ساتي. زموږ کوچي هېوادوال د څارویو، په ساتلو بوخت دی. په ژمي کې تودو سیمو او په اوړي کې سړو سیمو ته ځي. زموږ په هېواد کې بېلابېل سیمه ییز پسونه، لکه: قره قل، هزاره گي، بلوچي، ترکي (قطغني)، هراتي، بادغیسي، کندهاري او داسې نور روزل کېږي.**

**په افغانستان کې د پسونو روزل او ساتل ډېر اقتصادي او سوداگریز تجارتي ارزښت لري. د پسونو له غوښو، شیدو، پنیرو، مستو چې د ویټامینونو پروټینونو مهمه سرچینه ده، ډېره گټه اخېستل کېږي.**

له وړیو څخه یې غالۍ، ټغر، شړۍ، دستکشې، جورابې، وړین ټوکران او لمڅې جوړیږي او ځینې یې بهرته هم استول کیږي، د قره قل پوستکي زموږ د هېواد مهم صادراتي توکي دي. وړۍ، پوستکي او کولمې یې هم بهرته استول کیږي. د هېواد په غرنیو سیمو کې وزې ډېرې روزل کیږي چې د هغوی له غوښو، وژغېو، شیدو او مستو څخه یې ګټه اخیستل کیږي. د پسونو په روزلو کې باید تل د تجربه لرونکو کسانو او وترنرانو له مشورو څخه ګټه واخیستل شي.

په بهرنیو هېوادونو کې پسونه په فارمونو کې ساتل کیږي. دغه طریقه باید زموږ په هېواد کې هم دود شي.



## فعالیت

په ډلو کې د وزو او پسونو د اهمیت په اړه بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- لبنیات چې د ویټامینونو او پروټینونو سرچینه ده، نومونه واخلئ؟

۲- د وزو او پسونو اقتصادي اهمیت بیان کړئ؟

۳- که پسونه مو ناروغ شي، څه باید وکړو؟



## کورنۍ دنده

د وزو او پسونو د غذایي ارزښت په اړه په خپلو کتابچو کې یوه لنډه مقاله ولیکئ.

# غوایي

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د غواوو او غوایانو ساتل په کورني اقتصاد کې څه اهمیت لري؟**



**غواوې او غوایي د کورنیو ژویو له ډلې څخه دي چې خلک یې په کورونو او فارمونو کې ساتي. له غویانو څخه په قلبه کولو، د مالونو په لېږد رالېږد او غوښو څخه یې ګټه اخیستل کېږي. او همدا راز د غواوو له غوښو، شیدو او مستو څخه په خوراکي توکو کې ګټه اخېستل کېږي.**

**غوایي بېلابېل ډولونه لري، لکه کوپي لرونکي غوایي، چې د هېواد په سهیل ختیځو او سهیل لوېدیځو سیمو کې روزل کېږي. مېښې د هېواد په ختیځو او**

سهيلي سيمو او غڼګاو په شمال ختيځو سيمو لکه د بدخشان (پامير) کې روزل کيږي.

غوايي د کورنيو په اقتصاد کې ډېر اهميت لري، ځکه خو لازم دي چې په ټاکلي وخت هغو ته اوبه او واښه ورکړل شي او هم يې د استوګنې ځای هره ورځ پاک او وچ کړو او کله چې ناروغ شي بايد روغتيايي کتنځي ته يې بوځو. همدا راز، د هغوی اصلاح شوي نسلونه بايد په فارمونو کې وساتل شي.




په ډلو کې د غوايانو د اقتصادي اهميت په اړه خبرې وکړئ.




۱-غوايان د کومو موخو لپاره ساتل کيږي؟

۲-کوپي لرونکي غوايان د هېواد په کومو سيمو کې ساتل کيږي؟

۳- غڼګاو د هېواد په کومو سيمو کې روزل کيږي؟




د غوايانو د اقتصادي اهميت په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# آس

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، ستاسو په سيمه کې آسونه د څه لپاره روزل کيږي؟**



**آريايان لومړني خلک وو چې آس يې اهلي کړ. په عمومي توګه زموږ په هېواد کې درې جنسه آسونه شته دي.**

**١- قطغني آسونه: ډېر د بغلان، تخار، کندز، فارياب، سرپل، جوزجان او بلخ په ولايتونو کې روزل کيږي چې متوسط او برابر اندام، چټک رفتار او تېز مزاج لري.**

**٢- ترکمني آسونه: ډېر د مزارشريف او قطغن په سيمو کې پيداکيږي او د قطغني آسونو په پرتله غټ او جګ دي.**

**٣- هراتي آسونه: يوازې د سورلۍ لپاره دی چې ښه برابر اندام او ښه رفتار لري، خو د قطغني آسونو په پرتله چټک او تند خويه نه دي. ملا، نس، پښې او غاړه يې**

اوړده ده.

له آسونه څخه په سورلۍ، وزلوبه، ګاډۍ او نيزه و هلو کې ګټه اخيستل کېږي، خو هغه آسونه چې د مالونو په ليږد را ليږد کې ورڅخه کار اخيستل کېږي، يابو ورته ويل کېږي.

آسونو ته بايد په جګو آخورونو کې وابښه واچول شي، د ساتلو ځای يې پاک وي او همدا راز، يې د روزنې او د نسل د ښه والي لپاره له تجربه لرونکو خلکو او وترنرانو سره مشوره وشي؛ د آسونو نعلونو ته هم بايد تل پام وشي.



## فعاليت

په ډلو کې د آسونو د اهميت په اړه بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- زموږ په هېواد کې د آسونو څو جنسه شته؟

٢- قطغني آسونه زموږ د هېواد په کومو ولايتونو کې ساتل کېږي؟

٣- له هراتي آسونو څخه د څه لپاره کار اخيستل کېږي؟



## کورنۍ دنده

د وزلوبې په اړه يو مطلب په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# اوښ

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، له اوښ څخه څه کار اخېستل کېږي؟**



اوښان اهلي څاروي دي چې په افغانستان کې له پخوا زمانو څخه د سوداګریزو مالونو د لېږد را لیږد لپاره ساتل کېږي. په افغانستان کې دوه ډوله اوښان (یوکوپي او دوه کوپي) موجود دي. یو کوپي اوښ ته عربي اوښ هم وايي له دوه کوپي اوښ څخه ګړندی دی او په ډېرو ځایونوکې ورڅخه کار اخیستل کېږي.

دوه کوپیز اوښ ته بلخي اوښ هم وايي او له یو کوپیز اوښ څخه پیاوړی دی.

څرنګه چې اوښ د اوبو او خوراک پر وړاندې ډېر مقاومت لري، نو د صحرايي بېړۍ په نامه هم يادېږي. کوم وخت چې سوداګریزو کاروانونو د ورېښمو د مشهورې لارې

د چین او هند تر منځ د افغانستان له لارې څخه د اروپا خواته تګ راتګ کاوه. له اوښانو څخه به کار اخېستل کېده، خو نن د لېږد راليږد د ماشيني وسايطو د ډېروالي له امله د هغو اهميت کم شوی دی او يوازې کوچيان ورڅخه د مالونو په لېږد راليږ د کې کار اخلي او له وړيو، غوښو او شيدو څخه يې هم ګټه اخېستل کېږي.

د اوښانو د نسل د زياتوالي لپاره د ښه نسل رواجول او د هغو د ساتلو طريقه اړينه ده، چې تل له تجربه لرونکو خلکو او د حيواني کلينيکونو د ډکترانو له لارښوونو څخه ګټه واخيستل شي.



فعاليت

په ډلو کې د اوښانو د اهميت په اړه خبرې وکړئ.



ځواب ورکړئ

۱- په افغانستان کې څو ډوله اوښان شته دي؟

۲- له اوښانو څخه څه ګټې اخيستل کېږي؟

۳- اوښ ته ولې صحرايي بېړۍ وايي؟



کورنۍ دنده

د اوښانو د اقتصادي او غذايي اهميت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د چرګانو فارم

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د چرګانو د ساتلو په اړه څه ویلای شئ؟**



**چرګ کورنی مارغه دی چې له پخوا څخه زموږ په هېواد کې ساتل کېږي. خلک چرګان دهګیو او غوښو لپاره روزي او ساتي یې. د چرګانو غوښې او هګۍ، د پروټین او راز راز ویټامینونو لرونکي دي چې د انسان د روغتیا لپاره ډېر ګټور دي . په افغانستان کې چرګان په کورونو او فارمونو کې ساتل او روزل کېږي. له غوښو او هګیو څخه یې د هېواد په دننه کې ګټه اخیستل کېږي او بهرته هم صادرېږي چې له دې څخه ډېره ګټه لاسته راځي. چرګان دوه ډوله دي : یو ډول یې د هګیو لپاره، او بل ډول یې د غوښو لپاره روزل کېږي. هغه چرګان چې په کورونو کې ساتل کېږي د کورنیو چرګانو په نامه یادېږي چې شکلي**

او ډول ډول رنګونه لري. هغه چرګان چې په فارمونوکې روزل کېږي زیاتره یې سپین دي. د چرګانو روزل او ساتل د کورنیو او هېواد د اقتصاد په پیاوړتیا کې ښه رول لري. له دې کبله باید د چرګانو روزلو ته پام وشي. د هغو دانه او اوبه باید پاک وي. همدارنګه، د اوسیدو مناسب ځای ولري او تل په کې د ناروغیو ضد درمل وشیندل شي، په خپل وخت سره واکسین شي، چې ناروغه نه شي. د چرګانو د ساتلو او روزلو لپاره باید له وترنرانو او تجربه لرونکو خلکو سره مشورې وشي. موږ باید د چرګانو ساتلو او روزلو ته پام وکړو او د چرګانو د فارمونو په پراخولو او رواجولو کې زیار و باسو.



## فعالیت

په ډلو کې د چرګانو د ګټو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د چرګانو د فارمونو جوړول څه ګټې لري؟

۲- چرګان څو ډوله دي؟

۳-له چرګانو څخه ساتنه او څارنه څنګه وکړو؟



## کورنۍ دنده

د چرګانو د فارمونو د اقتصادي اهمیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د کبانو فارم

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، زموږ په هېواد کې د کبانو د روزلو فارمونه شته دي؟**



کبان د سړې وینې لرونکو حیواناتو له ډلې څخه دي چې د اوبو په خاص چاپېریال، لکه: یخو، تودو، تروو او خوږو اوبو کې ژوند کوي. کبان په آزاد ډول په اوبیز چاپېریال، لکه: په سمندرونو، سیندونو، جهیلونو او نورو کې هم ژوند کوي. څرنگه چې د کبانو غوښې ډېر اهمیت لري د هغوی په روزلو کې ډېر بدلونونه راغلي دي. اوس کبان په فارمونو کې هم روزل کېږي. زموږ د هېواد په سیندونو او جهیلونو کې هم راز راز کبان، لکه: شیرماهي، لقه ماهي، خالداره ماهي او نور ژوند کوي.

په درونټې، سروبي، کجکي، کوکچې او نورو کې د برېښنا د بندونو پروژې نه یوازې د برېښنا د تولید لپاره بلکې د نورو زیاتو بېلابېلو موخو لپاره جوړشوي دي چې له هغو څخه د کبانو روزنه هم ده.

په دې وروستیو وختونو کې د کرنې وزارت او مسلکي خلکو په مرسته د کبانو د

روزنې په برخه کې کوښښ روان دی. د کبانو د روزنې فارمونو ته د هېواد په ختیځو شمالي او جنوب لویدیځو ولایتونو کې په بېلو بېلو کچو پراختیا ورکړشوې ده چې شمېر یې (۳۵۰)فارمونو ته رسیږي او کلنۍ تولیدات یې نږدې (۱۵۰۰) ټنه دي. دا فارمونه د خلکو د اړتیا وړ حیواني پروټینونو لپاره بسنه نه کوي. پخوا به یوازې په سیندونو کې کبان نیول کېدل، خو اوس ډېر کبان له فارمونو څخه لاس ته راځي.
د کب غوښه د سپینو غوښو له ډول څخه ده چې د بدن د اړتیا وړ پروتین، ویټامینونه، او مالګې لري. غوړ او کلسترول یې لږ دي. څرنګه چې د کبانو روزل د خلکو په اقتصاد کې ډېر اهمیت لري، نو له دې کبله لازمه ده چې زموږ په هېواد کې د کبانو فارمونو ته ډېره وده ورکړشي ترڅو له یوې خوا خلکو ته د کار زمینه برابره شي او له بلې خوا د فارم لرونکو اقتصاد پیاوړی شي.



## فعالیت

په ډلو کې د کبانو د غوښو د اهمیت او د کبانو د ډولونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- کبان په کومو اوبو کې ژوند کولای شي؟

۲-په هېواد کې د کبانو د ډولونو نومونه واخلئ؟

۳- د کبانو غذایي اهمیت بیان کړئ؟



## کورنۍ دنده

د کبانو د اقتصادي اهمیت په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# پنځم څپرکی

## صنعت

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د صنایعو په ارزښت پوه شي.
- د غالیو د اوبدلو په اقتصادي اهمیت پوه شي.
- خامک ګنډنه او د څرمنو صنایع تشریح کړای شي.
- د ټولنې په پرمختګ کې د سمنټو د تولید، د سپکو صنایعو، د تورو او رنګه صنایعو، د حجارۍ او ترکانۍ د کارخانو اهمیت تشریح کړای شي.
- د صنعت له پرمختګ او پراختیا سره یې مینه او علاقه زیاته شي.

یو دیرشم لوست

# د صنایعو اهمیت

**پوښتنه**: ستاسو په فکر، صنایع څه اهمیت لري؟



**صنعت یو تولیدي فعالیت دی چې د لاس او یا ماشین په واسطه ترسره کېږي چې موخه یې د خلکو د اړتیاوو د پوره کولو لپاره له اومو او لومړنیو توکو څخه د مالونو او شیانو جوړول دي، لکه: کاني، کرنیز، مالداري او کیمیاوي توکي.**

**د صنایعو، په ځانګړې توګه د ماشیني صنایعو اهمیت په دې کې دی چې په لږ وخت کې د زیاتو اومو موادو شکل بدلوي او کیفیت او ارزښت یې پورته**

کوي.

زموږ خلک له پخوا څخه په کوچنيو دستګاوو کې د لاسي صنايعو په توليداتو کې بوخت دي. ډول ډول فرشونه، جامې او د اړتياوړ شيان، لکه: غالۍ، ليمڅي، ټغراو داسې نور شيان جوړوي.

زموږ په هېواد کې د ډېرو کانونو، ډول ډول کرنيزو حاصلاتو، مالدارۍ او ډېرې بشري قوې له شتون کيداى شي چې د صنايعو د منځ ته راتګ او پرمختګ لپاره ښې زمينې برابرې شي.

دولت هم بايد د ملي صنايعو د منځته راتګ او ودې لپاره اسانتياوې برابرې کړي، چې زموږ خلک په کار بوخت شي او زياته اندازه اړين توکي په هېواد کې توليد شي.



په ډلو کې د ماشيني صنايعو د اهميت په اړه خبرې وکړئ.



۱- صنعت تعريف کړئ؟

۲- د ماشيني صنايعو اهميت بيان کړئ؟

۳- اومه صنعتي توکي څه ته وايي؟



د هغو صنعتي توکو د ډولونو نومونه، چې ستاسو په سيمه کې توليديږي، په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# لاسي صنايع

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، لاسي صنايع د کورنيو په اقتصاد کې څه اهميت لري؟**



هغه صنايع چې په هغې کې د انسان له لاسي مهارت او وړو او ساده ماشينونو څخه کار اخېستل کېږي، لاسي صنايع بلل کېږي چې هغه نساجي صنعت، د ګنډلو صنعت، د وړېښمو د اوبدلو صنعت، د تارونو د وړېشلو صنعت، د چرمګرۍ صنعت، ترکاڼي، مسګري، آهنګري، زرګري، حکاکي او داسې نور صنايع دي.

د دې صنايعو زياته برخه د خلکو د ژوند د اړتياوو د پوره کولو لپاره مصرفېږي.

لاسي صنايع د کرنې او مالدارۍ سره نږدې اړيکې لري؛ ځکه د صنايعو زياتره اومه توکي له نباتاتو، لکه: پومبې، کتان، وړېښمو او له حيواني محصولاتو، لکه: پوستکو، وړيو او داسې نورو څخه لاسته راځي. زموږ په هېواد کې سپڼسين (نخي)، وړين او

وربښمين ډول ډول توکي، لکه: غالۍ، ټغر، سطرنجۍ، لونګۍ او ليمڅي جوړيږي او له لوخو څخه پوزي اوبدل کيږي.

د دولت پام او د تجربو تبادله د لاسي صنايعو د پراختيا لپاره زمنيه برابروي او د لاسي صـنايعو توليدات د هېواد اقتصاد پياوړی کوي.



## فعاليت

په ډلو کې د لاسي صنايعو د اهميت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د لاسي صنايعو زياتره اومه توکي له څه شي څخه لاسته راځي؟

۲- لاسي صنايع د کرنې او مالدارۍ سره څه اړيکې لري؟

۳- د لاسي صنايعو د ډولونو نومونه واخلئ.



## کورنۍ دنده

د هغو لاسي صنايعو په اړه، چې ستاسو په سيمه کې دود دي، څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# غالۍ اوبدل

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د غالۍ اوبدلو د صنعت وده او پراختیا زموږ د هېواد په اقتصاد کې څه اغېز لري؟**



**د غالۍ اوبدلو صنعت په افغانستان کې اوږده مخینه لري. غالۍ اوبدل زموږ د هېواد له ډېر مهم صنعت څخه بلل کېږي. افغاني غالۍ د جنسیت، دوام، رنګ او ډېزاین له پلوه نړیوال شهرت لري. له افغاني غالیو څخه چې هرڅومره کار واخیستل شي په هماغه کچه یې قیمت پورته ځي. افغاني غالۍ،لکه: د آقچې دولت آبادۍ، کندزۍ، مروي یا موري، قزل اياقي، بلوڅي او داسې نورې دي. چې د هېواد په دننه او بهرکې ډېر پیردونکي لري.**

**د ټغر اوبدلو صنعت هم د افغانستان په ډېرو ځایونو کې دود دی. ډېر ښه ډول**

يې قاقمه يې ټغر دی چې په مزار شريف، سرپل او جوزجان کې اوبدل کيږي.

د غاليو اوبدلو پراختيا زموږ د هېواد او کورنيو په اقتصاد کې ډېر رول لري.

.



## فعاليت

په ډلو کې د غاليو د اقتصادي اهميت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- زموږ د هېواد د غاليو د مشهورو ډولونو نومونه واخلئ.

٢- افغاني غالۍ له کوم پلوه ډېر شهرت لري؟

٣- افغاني غالۍ کوم ځای ته صادريږي؟



## کورنۍ دنده

د غاليو د اقتصادي اهميت په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# چمیارې

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د چمیارۍ د صنعت وده او پراختیا د کورنیو او ټولنې په اقتصاد کې څه رول لري؟**





**د چمیارۍ او بوټ ګنډلو صنعت د لاسي صنایعو له ډلې څخه دی چې له پخوازمانو څخه زموږ په هېواد کې دود لري. له څرمنې څخه بوټان، پوستین، پوستینچه، د اوبو مشک او د څارویو لپاره زین، تنګ (د زین ټړلو رسۍ)، واګې (لګام) او افسار (ترسرۍ) جوړوي.**

**دې صنعت نن زموږ په هېواد کې پرمختګ کړی دی. له څرمنې څخه ډول ډول بوټونه، جمپرونه، بکسونه، لاسي بکسونه او داسې نور شیان جوړېږي. دا کار عموماً په ورو او لویو دستګاوو کې ترسره کېږي او د خلکو اړتیاوې تریوه**

حده پوره کوي.

د چمیاري او بوټ گنډلو د صنعت وده نه یوازې د کورنیو په اقتصاد کې زیات اهمیت لري، د ټولنې د اقتصاد په پرمختګ کې هم ډېر ارزښت لري.




په ډلو کې د چمیارۍ د اقتصاد د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.




۱- د چمیارۍ صنعت د کومو صنایعو له ډلې څخه دی؟

۲- له څرمنې څخه کوم شیان جوړیږي؟

۳- له څرمنې څخه د څارویو لپاره کوم شیان جوړیږي؟




د چمیارۍ د صنعت د اهمیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# خامک ګنډل

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د خامک ګنډلو زده کول د ټولنې او د کورنیو په اقتصاد کې څه اهمیت لري؟**



**دا صنعت ډېر ډولونه لري، لکه: خولۍ ګنډل، غاړه ګنډل، دستمال ګنډل، پردې ګنډل او داسې نور.**

**خامک هم په لاس او هم د ګلدوزۍ د ماشینونو په واسطه ګنډل کېږي چې د یخن ګنډلو، څادرګنډلو، پایڅې ګنډلو او د میز د سر دستمالونو له ګنډلو څخه عبارت دي چې د هېواد په دننه او بهر کې ډېر اخیستونکي لري.**

**خامک ګنډل (د ستنې ګنډل) زموږ د هېواد یو پخواني صنعت دی. دا صنعت هم د نورو صنعتونو په څېر ارزښناک دی چې د هغې وده او پراختیا د هېواد او**

د کورنیو د اقتصاد د لوړوالي لامل کېږي.




په ډلو کې د خامک ګنډلو د صنعت د ډولونو په اړه خبرې وکړئ.




۱- د خامک ګنډلو د ډولونو نومونه واخلئ.

۲-خامک ګنډل دکورنیو د اقتصاد په ښه والي کې څه اهمیت لري؟

۳- د خامک ګنډلو صنعت د څه شي په واسطه ترسره کېږي؟




ستاسو په سیمه کې کوم ډول خامک ګنډل دود دي؟ په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# ماشيني صنايع

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، زموږ په هېواد کې کوم ماشيني صنايع توليدېږي؟**




**ماشيني صنايع په لږ وخت کې ډېرو صنعتي اومو توکو ته په ښه ډول بدلون ورکوي او هغه د خلکو د گټې اخيستنې لپاره برابروي. په تېرو لوستونوکې مو ولوستل چې زموږ هېواد يو کرنيز هېواد دی، نو ماشيني صنايعو هم زموږ په هېواد کې د اوبو او حرارتي برښنا په توليد سره سم په مرکز او ولايتونو کې په فعاليت پيل کړی دی.**

**په (۱۳۲۵) لمريز کال کې زموږ په هېواد کې ۳۹۱ وړو او غټو فابريکو فعاليت کاوه او د هېوادوالو د اړتيا وړ صنايع يې توليدول.**

**اوس هغه فابريکې بيارغول شوي او ترڅنگ يې ځينې نورو هم نوی کار پيل**

کړی دی. اوس د هېواد په مرکز او ولایتونو کې(۹) صنعتي پارکونه جوړشوي دي چې (۵۸۰)تولیدي شرکتونه پکې فعالیت کوي او په زرګونو هېوادوالو ته یې د کار زمینه برابره کړې ده.

په دې صنایعو کې د کانونو د را اېستلو، کیمیاوي صنایعو،سپکو صنایعو،لکه: د وړېښمو تولیدات، نخي صنایع، د غذایي توکو صنایع، د ممیزوپاکولو، د خوړلو د مالګې، کنګل، کوکاکولا، فانتا، نباتي غوړیو، د ډوډۍ محصولات، شیریني او داسې نور شامل دي.



## فعالیت

په ډلو کې د هېواد د ماشیني تولیداتو د ډولونو په اړه سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د ماشیني صنایعو ځانګړتیاوې بیان کړئ.

۲- زموږ په هېواد کې څو صنعتي پارکونه فعالیت لري؟

۳- د هېواد د ماشیني صنایعو ډولونه بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

د کورني صنایعو د تولیداتو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# د نساجي او اوبدلو فابریکه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، زموږ په هېواد کې کوم صنعت ډېره وده کړې ده؟**



**د نساجي او اوبدلو فابریکې هغه کار خونې دي چې په هغو کې د نخي، سنډې، وړیو او د وریښمو ټوټې تولید او اوبدل کیږي.**

**په افغانستان کې د اوبدلو بیلابیل ډولونه ،لکه:د نخي، وړیو، د وریښمو ټوټې او داسې نورې دود دي. د نساجي صنعت د سپکو صنایعو یوه برخه ده. ماشیني نساجي د لومړي ځل لپاره په ۱۳۳۲ لمریز کال د کاپیسا ولایت په ګلبهار کې جوړه شوه. زموږ د هېواد د اوبدلو فابریکې، د بګرامیو نساجي فابریکه، د ګلبهار نساجي، د پلخمري نساجي، دجبل السراج نساجي فابریکې، د کندهار د وړیو اوبدلو فابریکه، د پلخمري د وړیو اوبدلو فابریکه او د څرخي پله فابریکه ده.**

دې صنعت به په ښه او چټک تولید سره زموږ د خلکو اړتیاوې پوره کولې، خو په دې وروستیو کې دغه صنعت زیات زیانمن شوی دی.

دولت او خصوصي سکټور کوښښ کوي چې د اوبدلو صنعت ته د ودې او پرمختګ زمینه برابره کړي، چې له یو پلوه کورني تولیدات وده وکړي او له بلې خوا خلکو ته کسب او کار پیدا شي له دې سره به د هېواد اقتصاد پیاوړی شي او د بهرنیو توکو د واردولو مخه به ونیول شي.




په ډلو کې د اوبدلو صنعت په اړه یو له بل سره خبرې اترې وکړئ.




۱- د نساجي صنعت تعریف کړئ؟

۲- د اوبدلو او نساجي په فابریکو کې کوم توکي اوبدل کیږي؟

۳- اوبدل څه ګټه لري؟




د اوبدلو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د درمل جوړولو صنعت

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د درمل جوړولو صنعت څه اهمیت لري؟**




درمل هغه اندازه کیمیاوي مواد دي چې د بدن د وزن او عمر په اساس د ټاکلي وخت لپاره د متخصصو ډاکټرانو په واسطه ناروغانو ته توصیه کېږي او بېلابېل ډولونه لري،لکه: ګولۍ، شربت، کپسول، ستنې (پیچکارۍ) مرهم او داسې نور.

زموږ د هېواد خلک له پخوا زمانو څخه تر نن ورځې پورې د ناروغیو د درملنې لپاره د تجربه لرونکو کسانو په مشوره له طبي بوټو او مېوو څخه د دوا په توګه کار اخلي او هم د درملنې لپاره یوناني طبیبانو او ډاکترانو ته ورځي.

زموږ په هېواد کې لومړنۍ فابریکه چې ډول ډول درمل یې په معیاري او علمي بڼه تولیدول، د هوخست شرکت و چې د کابل په ښار کې د آلمان هیواد په مرسته جوړ شوی و او تولید یې د لوړ کیفیت لرونکی دی.

که چېرته په هېواد کې د درملو جوړولو د صنعت ودې او پرمختګ ته پام وکړو، نو موږ به په راتلونکي کې په لوړ کیفیت سره د درملو جوړولو د لویو فابریکو خاوندان یو.




په ډلو کې د درملو د ډولونو په اړه خبرې اترې وکړئ.




۱- درمل تعریف کړئ؟

۲- زموږ په هېواد کې د درمل جوړولو لومړی شرکت څه نومیده؟

۳- خلک له طبي بوټو او مېوو څخه د څه لپاره کار اخلي؟




د څو طبي بوټو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د سمنټ جوړولو فابریکې

**پوښتنه**

ستاسو په آند، زموږ په هېواد کې د سمنټ جوړولو څو فابریکې شته؟



له سمنټو څخه، د کورونو، جوماتونو، فابریکو، ښوونځیو، پلونو، سړکونو او نوروځایونو په جوړولو کې کار اخیستل کېږي. دې صنعت زموږ په هېواد کې تر یوې اندازې پورې وده کړې ده او خورا ښه کیفیت لري.

د غوري سمنټو فابریکه زموږ د هېواد له لویو فابریکو څخه ده چې د بغلان ولایت د پلخمري په ښار کې جوړه شوې ده. دا فابریکه په ۱۳۲۲هـ.ل. کال کې د پخوانۍ چکوسلواکیا د هېواد په تخنیکي او اقتصادي مرستې جوړه شوې وه او له سمنټو څخه يې زموږ د هېواد د ودانیو په جوړولو کې ګټه اخیستل کېږي.

د سمنټو د جوړولو دویمه فابریکه د پروان په ولایت کې د جبل السراج فابریکه ده د دې فابریکې سمنټ، د غوري د فابریکې د سمنټو په څېر ښه کیفیت لري.
د جبل السراج فابریکې په ۱۳۲۷ هـ.ل. کال کار پیل کړ. اوس د دې فابریکې کلنې تولیدات له شاوخوا ۲۵ زره ټنو څخه پورته دي.
همدارنګه، د خلکو د زیاتې اړتیا په خاطر په هرات او سمنګانو کې هم د سمنټو فابریکې د جوړولو په حال کې دي چې د دې نویو فابریکو په جوړولو سره به د سمنټو تولیدات زیات او د هېواد اقتصاد به مو پیاوړی شي.



## فعالیت

په ډلو کې د سمنټو څخه د ګټې اخستنې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د غوري سمنټو فابریکه زموږ د هېواد په کوم ولایت کې ده؟

۲- د غوري سمنټو فابریکه د کوم هېواد په مرسته جوړه شوې ده؟

۳- زموږ په هېواد کې د سمنټو جوړولو څو فاربریکې شته دي؟



## کورنۍ دنده

له سمنټو څخه د ګټې اخیستنې په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# درانه او سپک صنایع

**پوښتنه**

ستاسو په فکر، درانه او سپک صنایع کوم دي؟

**درانه صنایع، لکه:** د اوسپنې د جوړېدلو کارخانه، درانده ماشینونه او کیمیاوي صنایع زیاتې پانګونې ته اړتیا لري او د تولید بېلابېل پړاوونه وهي.
زموږ په هېواد کې د دې صنعت یوازینۍ کارخانه په کابل کې د جنګلک فابرېکه وه چې د کارول شوو اوسپنو په ویلي کولو یې فلزي توکي، لکه: مېز، څوکۍ، چپرکټونه، لاسي کراچۍ، مېخونه، دروازې، آلمارۍ، د موټر و پرزې، ګول سیخ او داسې نور تولیدول. په دې وروستیو کې د هغې د جوړولو او بیارغونو کار جریان لري. همدارنګه، په هېواد کې د کارول شوېو فلزاتو د ویلي کولو نوې کارخانې فعالیت کوي چې د هېوادوالو د اړتیا وړ ډول ډول ګاډر او ګول سیخ تولید وي.
زموږ په هېواد کې د معدني سرشارو زېرمو په درلودو سره او بیا په ځانګړې توګه د اوسپنې او مسو د یوشمېر معدنونو په شتون، د درنو صنایعو د ودې امکان شته دی.
**خفیفه یا سپک صنایع:** هغه صنایع دي چې د تولیداتو وزن یې لږ، لېږد یې آسان او په مستقیمه توګه د خرڅلاو بازارونو ته وړل کیږي. چې ښې بېلګې یې د نساجي صنایع، د لرګیو او کاغذ صنایع او محصولات دي، چې د کورنیو توکو تولیدات

او داسې نور دي.

څرنگه چې زموږ هېواد يو زراعتي هېواد دی او د سپکو صنايعو ډېر اومه توکي (مواد) يې کرنيز او حيواني محصولات دي، له همدې امله په هېواد کې د دې صنايعو د ودې لپاره ډېر امکانات شته.




په ډلو کې د درنو او سپکو صنايعو د محصولاتو د ډولونو په اړه خبرې وکړئ.




۱- درانه صنايع تعريف کړئ؟

۲- سپک (خفيفه) صنايع تعريف کړئ؟

۳- په هېواد کې د درنو صنايعو څو کارخانې موجودي دي؟




د درنو او سپکو صنايعو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# تور او رنګه فلزات

**پوښتنه**

ستاسو په آند، زموږ په هېواد کې له تورو او رنګه فلزاتو څخه څه ګټه اخېستل کېږي؟

## تور فلزات

اوسپنه، چودن، پولاد او نور هغه فلزات چې تور یا تور ته ورته رنګ ولري د تورو فلزاتو په نامه یادیږي. د تورو فلزاتو صنعت د اوسپنې د را اېستلو، ویلي کولو، د فولادو د جوړولو تولید او د هغو صنعتي کیدو ته وایي چې ډېره ګټه ورڅخه اخیستل کیږي.

زموږ په هېواد کې د اوسپنې (۲۷) کانونه شته دي چې ترټولو مهم یې د بامیانو په ولایت کې د حاجیګک د اوسپنې کان دي. اوسپنه یې هم ښه جنسیت او زیاتې زېرمې لري.

## رنګه فلزات

هغه فلزات چې له تور رنګ څخه پرته بل رنګ ولري د رنګه فلزاتو په نامه یادیږي، لکه: مس، المونیم، سپین زر، سره زر، نِکل، قلعي، سُرب او داسې نور.

## د رنګه فلزاتو صنعت

مس سور بخن فلز دی چې انسانانو د لرغونو زمانو راهېسې پېژانده او ګټه یې ورڅخه اخېسته د مسو او المونیمو څخه په برېښنایي ماشین الاتو او د برېښنا د انرژۍ د انتقال لپاره کار اخیستل کیږي.

له سپينو او سرو زرو څخه د زيات ارزښت له امله د گاڼې په جوړولو کې گټه اخېستل کېږي. قلعي چې سپين رنگه فلز دی په صنعت کې ډېر کارول کېږي.

ټټاران (مسگران) په ابتدايي وسايلو سره د هېواد والو د اړتيا وړ لوښي جوړوي او زرگران هم له سپينو او سرو زرو څخه ډول ډول گاڼې جوړوي.

زموږ په هېواد کې د مسو، سروزرو، سپينو زرو، المونيمو او د نورو رنگه فلزاتو کانونه شتون لري. د عينکو د مسو کان چې د لوگر په ولايت کې دی. د نړۍ له ښو او لويو کانونو څخه گڼل کېږي.

زموږ هېواد د کانونو له پلوه شتمن او غني دی. د فلزاتو راايستنه او له هغو څخه گټه اخېستنه د کارونو په رامنځ ته کيدو او د هېواد په اقتصادي پرمختگ کې ډېر رول لري.



### فعاليت

په ډلو کې د تورو او رنگه فلزاتو د اهميت په اړه خبرې وکړئ.



### ځواب ورکړئ

۱- د هېواد د اوسپنې تر ټولو لوی کان په کوم ولايت کې موقعيت لري؟

۲-زموږ په هېواد کې د رنگه فلزاتو کوم کانونه موجود دي؟

۳- د عينکو د مسو کان په کوم ځای کې موقعيت لري؟



### کورنۍ دنده

د فلزاتو د اقتصادي ارزښت په اړه خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# ترکاڼي او حجاري

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، له ډبرو او لرګیو څخه په کومو برخو کې ګټه اخیستل کیږي؟**





## الف) ترکاڼي

هغه کسب دی چې له لرګیو څخه ښکلي وسایل لکه: صندوقونه، دروازې، کړکۍ، مېزونه، څوکۍ او داسې نور جوړوي. زموږ په هیواد کې د لرګیو صنعت له پخوا وختونو څخه دود دی. ترکاڼانو به له لرګیو څخه ډول ډول کړکۍ، ورونه(دروازې)، مېزونه، څوکۍ او داسې نور وسایل په بېلابېلو بڼو او ډولونو سره جوړول. د نورستان ولایت د لرګیو څوکۍ، مېزونه، صندوقونه او کړکۍ ډېرې ښکلې او ارزښتناکې دي او تل د ګرځندویانو د پام وړ ګرځېدلې دي. په ختیځو او سوېلي ولایتونوکې ترکاڼان د کورونو او جوماتونو چتونه په بېلابېلو بڼو سره ښکلي کوي چې د کورونو او جوماتونو ښکلا پرې زیاتیږي.

د دغه صنعت ودې او پراختيا ته د دولت په پاملرنه زموږ د خلکو لپاره د کارونو او بوختياوو ښې آسانتياوې برابريږي او د هېواد اقتصاد پرې پياوړی کيږي.

## ب) حجاري

د زينتي وسايلو او لوښوجوړولو په موخه د ډبرو کيندلواو توګولو ته حجاري وايي. د حجاري صنعت زموږ په هېواد کې له پخوا څخه دود دی، د هېواد تکړه ډبر توړونکي د مرمرو او رخام له ډبرو څخه د کورونو او تعميرونو لپاره ډول ډول زينتي ډبرې او بېلابېل لوښي، لکه: پياله، ګيلاس، چايجوش، ميز او داسې نورجوړوي چې د هېواد په دننه او بهر کې د ښه بازار په درلودلو هنري او تاريخي اهميت لري.

د حجاري فابريکې په جلال آباد، هلمند او هرات ولايتونو کې جوړې شوې دي چې له توليد څخه يې د هېواد په دننه کې ګټه اخېستل کيږي او بهر ته هم لېږدول کيږي.




په ډلو کې د ترکاڼۍ او حجارۍ صنعت په اړه خبرې اترې وکړئ.




۱- ترکاڼان له لرګيو څخه کوم شيان جوړوي؟

۲- د لرګيو په صنعت کې زموږ د هېواد کوم ولايتونه مشهور دي ؟

۳- ډبر توړونکي له ډبرو څخه کوم شيان جوړوي؟




په کوم ځای کې چې ژوند کوئ، د هغو شيانو نومونه چې له لرګيو څخه جوړيږي، په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# شپږم څپرکی

## سوداګري

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د سوداګرۍ په مفهوم پوه شي.
- د داخلي او بهرنۍ سوداګرۍ په اقتصادي اهمیت پوه شي او هغه یو له بله سره توپیرکړای شي.
- د هېواد د صادراتو او وارداتو په اړه توضیحات ورکړای شي.
- د سوداګرۍ او د هغه له اقتصادي اهمیت سره مینه پیدا کړي.

درې ځلویښتم لوست

## سوداګري

**پوښتنه**: ستاسو په فکر، سوداګري د یوه هېواد په اقتصاد کې څه رول لري؟



انسانان د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره دې ته اړ دي، هغه توکي چې خپله یې تولید کړې وي پر نورو وپلوري او د خپلې اړتیاوړ توکي له نورو څخه ترلاسه کړي،دې ته سوداګري وایي. په بل عبارت، د ګټې په موخه د توکو اخیستلو او پلورولو ته سوداګري وایي.

سوداګري دوه ډوله ده: داخلي سوداګري او بهرنۍ سوداګري.

د هر هېواد پراختیا او پرمختګ د توکو په ډېر تولید پورې تړلی وي، څومره چې د هېواد صادرات ډېر وي، په هغه کچه بهرني اسعار (پیسې) هغه هېواد ته راوړل کېږي او پیسې یې ارزښت پیدا کوي او اقتصاد یې پیاوړی کېږي.

افغانستان داسې يو هېواد دی چې له وچې سره تړلی دی او له سمندرونو سره مستقيمه لار نه لري، خو له دې سره د نړۍ له زياترو سوداګريزو بازارونو سره اړيکې لري.

د افغانستان سوداګري په کرنيزو (زراعتي) محصولاتو، د ځارويو په توليداتو او لاسي صنايعو باندې ولاړه ده.

افغانستان هر کال ډېرې تازه او وچې مېوې، لکه: پسته، بادام، څېغوزي، مميز او داسې نور پاکستان، هندوستان، اروپا او امريکا ته لېږدوي.

زموږ د هېواد صادراتي توکي د ځارويو توليدات، پوستکي، د قره قل پوستکي او کولمې دي چې د اروپا او نورو هېوادونو بازارونو ته لېږدول کېږي چې په پايله کې يې ډېر خارجي اسعار (پيسې) هېواد ته راځي او د هېواد د اقتصاد په پرمختګ کې مهم رول لري.



## فعاليت

په ډلو کې د سوداګرۍ د ګټو په اړه په خپلو منځونو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- سوداګري څه ته وايي؟

٢- زموږ د هېواد سوداګري په کومو شيانو ولاړه ده؟

٣- زموږ د هېواد تر ټولو ډېر صادراتي توکي کوم دي؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان د صادراتو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# داخلي سوداګري

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، داخلي سوداګري د هېواد په اقتصادکې څه اهميت لري؟**



**له يوې سيمې څخه بلې سيمې ته د ګټې اخېستنې په موخه د اضافي محصولاتو انتقالولو ته داخلي سوداګري وايي.**

**داخلي سوداګري نه يوازې ښارونه يو له بل سره نښلوي، د هېواد د بېلابېلو قومونو او قبايلو ترمنځ ټولنيزې، کلتوري او اقتصادي اړيکې هم ټينګوي او پراخوي. سوداګر له کليو څخه ښارونو ته سوداګريز توکي لېږدوي او په مقابل کې د اړتيا وړ شيان د هېواد له لويو ښارونو څخه کليو او ولسواليو ته انتقالوي چې له دې فعاليت څخه سوداګران ګټه ترلاسه کوي او د خلکو اړتياوې هم**

پوره کوي.

په عمومي توګه د هېواد سوداګران صنعتي اومه توکي، مېوې، د لاسي صنايعو توليدات او څاروي په ښارونوکې پلوري او په بدل کې د خلکو د اړتيا وړ شيان اړوندو سيمو ته انتقالوي.



## فعاليت

په ډلو کې د داخلي سوداګرۍ په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د کليو او ښارونو د خلکو ترمنځ د داخلي سوداګرۍ رول بيان کړئ.

٢- داخلي سوداګر د کليو او ښارونو ترمنځ کوم شيان انتقالوي؟

٣- ستاسو داستوګنې په سيمه کې کوم شيان پلورل او پېرودل کيږي؟ نوم يې واخلئ.



## کورنۍ دنده

د داخلي سوداګرۍ په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# بهرنۍ سوداګري

**پوښتنه**

ستاسو په آند، بهرنۍ سوداګري څه اهمیت لري؟

## صادرات

نورو هېوادونو ته د خرڅلاو او یا د بدلېدو په موخه د کالیو او نورو توکو لېږدولو ته صادرات وايي. صادرات د هېواد د اقتصاد په وده او پراختیا کې ډېر اهمیت لري، له دې کبله باید د صنعتي تولیداتو او زراعتي محصولاتو پراختیا او لوړوالي ته پام وشي، چې زموږ د خلکو اړتیاوې پوره او اضافي محصولات مو له هېواد څخه بهر ته صادر شي. هغه هېواد چې نورو هېوادونو ته ډېر کالي او توکي صادر وي، په هماغه کچه يې خپل اقتصاد لوړیږي.

زموږ د هېواد صادرات دادي: پنبه، وچې او تازه مېوې، وړۍ، کُلمې، پوستکي د قره قل پوستکي او طبي نباتات، لکه: زعفران، زیره، هنګ، شیرین بویا(خوږه ولې)، د لاسي صنایعو محصولات، لکه: غالۍ او داسې نور، چې له صادرولو څخه يې زموږ هېواد ته بهرني اسعار را ووړل کیږي او د اقتصادي ودې لامل کیږي.

## واردات

زموږ هېواد کرنیز محصولات او صنعتي توکي تولیدوي. د دې لپاره چې زموږ د هېواد اقتصاد په کرنیزو محصولاتو، مالدارۍ او لاسي صنایعو ولاړ دی او صنعت يې ښه وده نه ده کړې چې د هېواد ټولې اړتیاوې پوره کړي، نو د

اړتیا ور توکي، لکه: نفت، ګیس (طبیعي ګاز)، خوراکي توکي، د ودانیو توکي، نقلیه وسایط، درمل، د برېښنا سامان آلات او داسې نور له نورو هېوادنو څخه واردېږي.

د دې لپاره چې د کالیو او توکو د واردولو مخه ونیسو او یا تر یو بریده پورې هغه لږ کړو، نو باید د خپل هېواد تولېداتو او محصولاتو ته پام وکړو.

زموږ په هېواد کې د کرنې لپاره ځمکې شته چې د اوبو له زېرمو او زراعتي ماشینونو څخه په کار اخیستلو سره کولای شو کرنیز محصولات اوچت کړو. په همدې توګه، د کانونو، نفتو او ګازو له رااېستلو سره کولای شو، د هېواد صنعت پراخه کړو، د هېواد کورنۍ اړتیاوې حل او هم اضافي محصولات بهر ته ولېږدوو.



## فعالیت

په ډلو کې د صادراتو او وارداتو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د افغانستان ترټولو مهم صادراتي توکي کوم دي؟

۲- صادرات څه ته وایي؟

۳- د هېواد واردات څرنګه کمولای شو؟



## کورنۍ دنده

په خپلو کتابچو کې د هغو شیانو نومونه ولیکئ چې له هېواد څخه بهر ته لېږدول کېږي.

# زموږ د هېواد بندرونه

**پوښتنه**

**کله د هېواد له کوم بندر څخه تېر شوي یاست؟**




بندر د دوو هېوادونو ترمنځ هغه سرحدي نقطه ده چې د خلکو او سوداګریزو مالونو تګ راتګ او حمل ونقل پکې کېږي.

هغه هېوادونه چې له سمندر سره نښتي دي، سمندري بندرونه لري. خو هغه هېوادونه چې له سمندر سره لاره نه لري، د وچې بندرونه لري. زموږ د هېواد مهم بندرونه حیرتان، د آقیني، آی خانم، شیرخان، تورغونډی، اسلام قلعه، زرنج، تورخم، غلام خان، سپین بولدک او ابونصرفراهي دي.

د تورخم بندر: دا لویه سوداګریزه لاره ده. د افغانستان او پاکستان ترمنځ له ګڼې

ګوڼې څخه ده که سیمه ده چې د ډیورنډ د تحمیلي کرښې په اوږدو کې پرته ده.

**د سپین بولدک بندر:** دا بندر د کندهار ولایت په سویل کې د ډیورند د تحمیلي کرښې په اوږدو کې موقعیت لري او د افغانستان او پاکستان ترمنځ دویم لوی بندر دی.

**د حیرتان بندر:** د حیرتان بندر د بلخ ولایت په شمال، د افغانستان او ازبکستان ترمنځ پوله کې پروت دی، زموږ هېواد د منځنۍ آسیا له هېوادونو سره نښلوي او زموږ د هېواد یو مهم سوداګریزو بندر شمېرل کېږي.

**د تورغونډۍ بندر:** دا بندر افغانستان له ترکمنستان سره چې د افغانستان او منځنۍ آسیا د هېوادونو تر منځ مهمه سوداګریزه لاره ګڼل کېږي، نښلوي.

**د اسلام قلعه بندر:** د افغانستان او ایران ترمنځ سرحدي سیمه ده چې د هرات ولایت لویدیځ لوري ته موقعیت لري.

د بندرونو شتون د یوه هېواد لپاره ډېر مهم او حیاتي دی. له دغو لارو څخه د خلکو او د سوداګریزو مالونو تګ راتګ او لیږد رالیږد کېږي. له بندرونو څخه لاس ته راغلي ګټه زموږ د هېواد د عوایدو مهمه برخه ده.



## فعالیت

په ډلو کې د هېواد د مهمو بندرونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د افغانستان د بندرونو نومونه واخلئ؟

٢- د تورغونډۍ د بندر په اړه معلومات ورکړئ؟

٣- د تورخم بندر زموږ هېواد له کوم هېواد سره نښلوي؟



## کورنۍ دنده

د بندرونو د اقتصادي اهمیت په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# اووم څپرکی

# د ژوند چاپېریال

**د څپرکي موخې**

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.

- د ژوند د چاپېریال په ګټو به پوه شي.
- د مختلفو سیمو اقلیم به وپېژني.
- د خپل هېواد د اقلیمونو ډولونه به تشریح کړي.
- د برېښنا د تولید د څرنګوالي او ارزښت په هکله به تشریحات ورکړي.
- د هېواد د کانونو، زېرمو د اهمیت او ارزښت په هکله به پوه شي.

اوو څلوېښتم لوست

## د ژوند چاپېریال

**پوښتنه:** ستاسو په آند، انسانان د خپل ژوند د چاپېریال د پاک ساتلو لپاره ولې کوښښ کوي؟



**د ژوند د چاپېریال ساتل د اوسېدلو ځای د پاک او سمسور ساتلو په معنا دی.**

**د ژوند د چاپېریال ساتل د روغ جسم او غوره ژوند لپاره ضروري دی.**

**فاضله توکي، لوګي، خځلې، خاورې او دوړې د ژوند د چاپېریال د ککړتیا او د ډول ډول ناروغیو لامل ګرځي. چې باید په ټاکلو او مناسبو ځایونو کې وغورځول شي.**

کور، جومات، مدرسه، ښوونځی، لارې، د کرنې ځمکې، باغونه، د سيل ځايونه، ويالې، سيندونه، څاګانې، کاريزونه، چينې او نور چې د ژوند چاپېريال دی بايد پاک وساتل شي او د ونو او ځنګلونو له پرېکولو څخه يې ډډه وشي.

د کورنيو مشرانو او ښوونکو ته پکار ده چې زده کوونکو ته د ژوند د چاپېريال د پاک ساتلو په اړه ګټورې لارښوونې وکړي.

پاکوالی د روغتيا لپاره ډېر ضرور دی له دې امله بايد خپل ځان او چاپېريال پاک او سمسور وساتو. افغانستان زموږ د ټولو ګډ کور دی. د هغه پاک او سمسور ساتل د هر افغان دنده ده.



## فعاليت

په ډلو کې د ژوند د چاپېريال د پاک ساتلو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د ژوند چاپېريال څه شی دی؟

٢- ناپاکه چاپېريال څه زيانونه لري؟

٣- کوم شيان د ژوند چاپېريال ککړوي؟



## کورنۍ دنده

د ژوند د چاپېريال د ساتلو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# اقلیم

**پوښتنه**

**ویلای شئ چې ستاسو د استوګنځي هوا څرنګه ده؟**



**اقلیم، د هوا د حالاتو، لکه: تودوخه، اورښت، رطوبت او داسې نورو منځنی حد دی چې له ډېرشو کلونو څخه زیات په یوه سیمه کې تکرار شي.**

**د ځمکې د کرنې د سیمو اقلیم د استوا له کرښې او له سمندر څخه د لرېوالي او د بحر له سطحې سره د لوړوالي د اختلاف له امله جلاجلا دی چې په لاندې ډول دي:**

**معتدل اقلیم**

**په دغه اقلیمي سیمه کې د کال په اوږدوکې بارانونه اوري، هوا یې نه ډېره توده او نه ډېره سړه وي.**

**قطبي اقليم**

د کال په اوږدو کې سوړ، وچ او کنګل وي.

**غرنی اقليم**

د ارتفاع او لوړوالي له امله سوړ او واورين وي.

**صحرايي اقليم**

د کال په اوږدوکې تود او وچ وي او لږ باران پکې اوري.

**نيمه صحرايي اقلم**

اوړی يې تود، وچ او ژمی يې سوړ او واورين وي.

**مديترانه يي اقليم**

اوړی يې تود، وچ او ژمی يې معتدل او باراني وي.

اقليمي سيمې د ځارويو او نباتاتو د ودې لپاره مناسبې سيمې دي. په دې توګه، د نباتاتو د کرښې لپاره د هرې سيمې د اقليم پېژندل اړين دي.




په ډلو کې د اقليم د ځانګړتياوو په اړه په خپلوکې خبرې وکړئ.




۱- اقليم تعريف کړئ؟

۲-د اقليمونو د ډولونو نومونه واخلئ؟

۳- د صحرايي اقليم هوا څرنګه ده؟




د خپلې سيمې د اقليم په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

نه څلوېښتم لوست

# د افغانستان اقليم

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، ستاسو سيمه څه ډول اقليم لري؟**



د صحرايي سيمه



مديترانه يي سيمه

**افغانستان يو غرنی هېواد دی. د شمالي نيمي کرې په معتدله سيمه کې د استوا له کرښې او د هند له سمندره لرې پروت دی چې لاندې اقليمونه لري:**

## ۱- صحرايي اقليم

**زموږ د هېواد سهيل لوېديځې سيمې، لکه: فراه، لښکرګاه او نيمروز، صحرايي اقليم لري چې هلته باران لږ اوري، ورځې يې تودې او شپې يې سړې وي.**

## ۲- نيمه صحرايي اقليم

**زموږ د هېواد شمالي ولايتونه نيمه صحرايي اقليم لري؛ يعنې دوبی يې تود، وچ او ژمی يې په نسبي توګه سوړ او واورين وي.**

### ۳- غرنۍ اقلیم

د هېواد غرنۍ سیمې د ارتفاع له امله سړه هوا لري او په لوړو سیمو کې یې تل په ژمي کې واورې اوري.

### ۴- مدیترانه یي اقلیم

د ننګرهار، کونړ او لغمان ولایتونه مدیترانه یي اقلیم لري. اوړی یې تود او وچ او ژمی یې معتدل او باراني وي. په دغو ولایتونو کې د نارنج، مالټې او لیمو ونې ښه حاصل ورکوي.

زموږ هېواد د بېلابېلو اقلیمونو د لرلو له امله د ډول ډول غلو او باغونو د روزلو وړتیا لري چې د هرې سیمې اقلیمي ځانګړتیاوو ته په پام سره د هماغې سیمې د اقلیم ځانګړي نباتات پکې کرل کېږي.



فعالیت

په ډلو کې د اقلیمي ځانګړتیاوو د ډولونو په اړه خبرې وکړئ.



ځواب ورکړئ

۱- د ننګرهار، کونړ او لغمان ولایتونه څه ډول اقلیم لري؟

۲- زموږ د هېواد کومې سیمې صحرایي اقلیم لري؟

۳- د نیمه صحرایي اقلیم ځانګړتیاوې بیان کړئ؟



کورنۍ دنده

د افغانستان د اقلیم په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د برېښنا تولید

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، برېښنا څرنګه تولید پېږي؟**



برېښنا هغه انرژي ده چې د تودوخې د رامنځته کېدو، روښنايي او د ماشينونو په کار اچولو او داسې نورو برخو کې ورڅخه ګټه اخيستل کېږي.

افغانستان يو غرنی هېواد دی چې له غرونو څخه يې ډېر سيندونه سرچينه اخلي. هغه اوبه چې له غرنيو سيمو څخه هوارو سيمو ته رابهيږي، د يوې قوي لرونکي دي چې خلکو له پخوا څخه تر نن پورې له هغو څخه ډول ډول ګټې اخيستي دي؛ د بېلګې په توګه: خلک د کرنې په برخه کې له اوبو څخه د ګټې اخېستلو سربېره داوبو له قوې څخه د ژرندو او پايکوګانو په فعالولو او د توربينونو په نصبولو سره برېښنا تولید او له هغې څخه په روښنايي، د ماشينونو

په کار اچولو او داسې نورو برخو کې ګټه اخلي. تردې مهاله، زموږ په هېواد کې د برېښنا ډېر بندونه پرسیندونو ودان شوي دي چې مهم بندونه يې، د ماهيپر، نغلو، سروبي، درونټې، کجکي، جبل سراج، پلخمري او سلما بندونه دي. د دې بندونو برېښنا د هوايي او د ځمکې لاندې لينونو او کېبلونو په واسطه ښارونو او فابريکو ته لېږدول شوې ده.

زموږ په هېواد کې پر دې سربېره چې د اوبو له برېښنا څخه کار اخلي، د لمر او باد له انرژۍ څخه هم برېښنا ترلاسه کوي. حرارتي برېښنا د طبيعي ګازونو، نفتو او د ډبرو سکرو له انرژي څخه توليدېږي. نن په نړۍ کې له هسته يي انرژۍ څخه هم زياته برېښنا توليد وي.



## فعاليت

په ډلو کې د برېښنا د توليد په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- خلکو په پخوا وختونو کې د اوبو له قوې څخه څرنګه کار اخېسته؟

٢- له اوبو څخه څنګه کار اخيستلای شو؟

٣- د سيند له اوبو څخه برېښنا څرنګه ترلاسه کېږي؟



## کورنۍ دنده

د خپل هېواد د برېښنا د بندونو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د افغانستان کانونه او طبیعي زېرمې

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د افغانستان مهم کانونه کوم دي؟**



**کان هغه ځای ته ویل کېږي چې په هغې کې د فلزاتو ډولونه او قیمتي ډبرې شتون لري.**

**افغانستان د ځمکنیو زېرمو او کانونو له امله شتمن هېواد دی. زموږ په هېواد کې کانونه او طبیعي زېرمې، لکه: سره زر، سپین زر، لاجورد، زمرد، جست، مس، د ډبرو سکاره، طبیعي گاز، نفت، مالگه، سلفر، گوگړ، گچ او داسې نور شتون لري.**

**د نفتو او طبیعي گازونو زېرمې د تخار، کندز، جوزجان، فاریاب، بادغیس، هرات، پکتیکا او نورو ولایتونو کې تثبیت شوي دي. همداراز، د مسوکان د لوگر ولایت د عینکو په سیمه کې او د اوسپنې کان د بامیانو ولایت د حاجي**

ګک په سیمه کې موقعیت لري.

له بده مرغه تراوسه پورې د ځمکې لاندې له زیاترو زېرمو څخه په ښه او فني ډول ګټه نه ده اخېستل شوې. د ډبرو سکاره چې د تودوخې لپاره ورڅخه کار اخیستل کېږي، د بغلان ولایت د کرکر او آشپشتې له کانونو او د سمنګانو د دره صوف څخه او مالګه د تخار او هرات له نمکسار څخه لاسته راځي.

همدارنګه زینتي ډبرې، لکه: مرمر او رخام د غزني ولایت په جاغوري، ننګرهار، هلمند، کندهار، غوربند، میدان وردګ او پر نورو سیمو کې په پریمانه توګه موندل کېږي.

د کاني زېرمو صحیح او فني استخراج پرته له دې چې خلکو ته د کار زمینه برابروي، زموږ د هېواد د اقتصاد په لوړوالي کې هم ډېر ارزښتناک رول لري.



## فعالیت

په ډلو کې د طبیعي زېرمو او د کانونو د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- زموږ د هېواد په کومو ولایتونو کې د نفت او ګازو زېرمې شته لري؟

۲- د زینتي ډبرو نومونه واخلئ؟

۳- د ډبرو له سکرو څخه څ ه کار اخیستل کېږي؟



## کورنی دنده

د عینکو د مسو د کان په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.